

د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د
ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي لارښود
# د قرآن کریم زده کړه
# دریم ټولګی




د ښوونکي لارښود د قرآن کریم زده کړه - دریم ټولګی

درسي کتابونه د پوهنې په وزارت پورې اړه لري. په بازار کې یې پیرودل او پلورل په کلکه منعه دی. له سر غړوونکو سره به یې قانوني چلن وشي.



د چاپ کال: ۱۳۹۳هـ ش.



**د پوهنې وزارت**

د تعليمي نصاب د پراختيا او د
ښوونکو د روزنې معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي
كتابونو د تاليف لوی رياست

# د ښوونكي لارښود

# د قرآن كريم زده كړه

# دريم ټولگی

د چاپ کال: ۱۳۹۳ هـ . ش

**ليکوالان:**

- مایل آقا متقی
- عبدالسلام تائب
- شهید الله عزیزی

**علمي او مسلکي اډیټ:**

- محمد آصف کوچی

**دیني، سیاسي او کلتوري کمېټه:**

**د څارنې کمېټه:**

- دکتور اسد الله محقق د پوهنې د وزارت د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معین
- دکتور شېرعلي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې رییس
- سرمؤلف عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی رییس

**ډیزاین:**

عنایت الله غفاري او فیض محمد فیاض



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی / دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې / هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی / د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو / د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي / پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي / هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي / لکه لمر پر شنه اسمان

په سینه کې د اسیا به / لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مودی رهبر / وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحیم**

## د پوهنې د وزير پيغام

**ګرانو استادانو او ښوونکو،**

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختيا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعليمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتياوو له مخې رامنځته کيږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنيزې اړتياوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعليمي نصاب هم علمي او رغنده بدلون ومومي. البته نه ښايي چې تعليمي نصاب د سياسي بدلونونو او د اشخاصو د نظريو او هيلو تابع شي.

دښوونکی د لارښود دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتيب شوی دی. د تدريس د نويو ميتودنو له مخې فعاليتونه په کې ورزيات شوي دي. د زده کړې په بهير کې د زده کوونکو فعال ساتل د درسي پلان برخه شوې ده.

هيله من يم د دې کتاب منځپانګه، چې له لارښوونو او تعليمي پلان سره سم د فعالې زده کړې د ميتودونو د کارولو له لارې تدريسيږي، ستاسو درنو استادانو د ګټې وړ وګرځي. د زده کوونکو له ميندو او پلرونو څخه غوښتنه کيږي، د خپلو لوڼو او زامنو په باکيفيته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې د پوهنې هيلې ترسره شي او زده کوونکو او هېواد ته ښې برياوې ور په برخه کړي.

زه پر دې ټکي پوره باور لرم چې زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعليمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او دروند مسؤوليت لري.

د پوهنې وزارت تل زيار کاږي چې د پوهنې تعليمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دين له بنسټونو او علمي معيارونو سره سم د ټولنې د څرګندو اړتياوو له مخې پراختيا ومومي.

په دې ډګر کې د هېواد له ټولو علمي شخصيتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده کوونکو له ميندو او پلرونو څخه هيله لرم چې د خپلو نظريو او رغنده وړانديزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په لا ښه تاليف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتيب کې يې مرسته کړې، له ملي او نړيوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعليمي نصاب په چمتو کولو او تدوين، د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې يې مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم.

ومن الله التوفيق

فاروق وردګ

د افغانستان د اسلامي جمهوريت د پوهنې وزير

# فهرست

**سرلیک** **مخ**

**لوست: لومړی**

**عنوان: د قرآن کريم فضيلت**

**صفحه:**

**وخت: يو درسی ساعت (۴۵) دقيقې.**

**موخې: شاګردان بايد:**

- د قرآن کريم د فضايلو سره آشنا شي .
- وکولای شي د قرآن کريم فضيلتونه نورو ته بيان کړي .
- پخپله د قرآن کريم د تلاوت سره مينه پيدا کړي.

**اړين معلومات**

قرآن کريم بې شميره فضايل او ځانګړتياوې لري، لکه چې ابن الصلاح فرمايي: قرآن کريم هغه ځانکړی کرامت دی چې الله تعالی انسان ته ور په برخه کړی دی، او پرښتې دغه کرامت د ځان سره نه لري، ولې زياته ليوالتيا لري چې د قرآن کريم تلاوت له ا نسان څخه واوري.

د قرآن کريم د هر ټکي په تلاوت سره الله جل جلاله انسان ته لس نيکۍ ورکوي، همدارنګه د قرآن کريم د تلاوت فضيلت د تسبيح، تهليل او تکبير څخه زيات دی.

قرآن کريم له ټولو اسماني کتابونو څخه غوره کتاب دی، ځکه د دې کتاب ټول آيتونه او حکمونه د قيامت تر ورځ پورې د تطبيق وړ دي پداسې حال کې چې د مخکنيو کتابونو تکميلوونکی او تصديقوونکی کتاب دی، او لارښوونې يې د دين او دنيا د واړو علومو ته شاملې دي لکه چې الله جل جلاله يې په اړه فرمايي:

(و ما من غائبة فی السماء والارض الا فی کتاب مبين).

همدارنګه ساينس پوهان او تکنالوجستانو پدې حقيقت اعتراف کړی دی.

**تدريس تګ لاره: مطالعه، سوال او جواب، انفرادي.**

**درسی مرستندويه توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشير وغيره.**



| د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي په چوپتیا سره لوست لولي<br>– زده کوونکي په دوه نفري توګه د قرآن کریم د فضیلت په اړه یو له بل سره خبرې کوي.<br>– څلور زده کوونکي هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راځي او فعالیت سر ته رسوي او نور ټول زده کوونکي ورته متوجه کیږي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي سوالونه ځوابوي. | – ښوونکی محترم د احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخستلو څخه وروسته زده کوونکو ته د دریم ټولګي د قرآن کریم د زده کړې مضمون معرفي کوي او د نوموړي مضمون د اهمیت، ځانګړتیاوو او پدې کال کې د مقرره سورتونو په اړه ورته معلومات وړاندې کوي.<br>– پر تختې له عنوان (د قرآن کریم فضیلت) لیکلو څخه وروسته زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او په مناسب آواز سره درس وایي.<br>– بیا په دریو زده کوونکو درس تکراروي، پداسې حال چې ښوونکی ټولګی کنترولوي او د زده کوونکو غلطیانې اصلاح کوي.<br>– وروسته زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په چوپتیا سره لوست ولولي، او پخپله د ټولګي ټولې برخې څاري او د شاګردانو تر منځه ګرځي او ستونزې یې حلوي.<br>– زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو د خپل خپل ملګري سره د قرآن کریم د فضیلتونو په اړه خبرې وکړي.<br>– بیا له څلورو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او لوست ولولي، محترم ښوونکی ورسره مرسته کوي او لا زیات یې تشویقوي.<br>**لنډیز:**<br>تر ټولو غوره مسلمان هغه دی چې قرآن کریم زده کړي او نورو ته یې وښيي.<br>**ارزونه:**<br>په لاندې پوښتنو سره د لوست ارزونه کیږي:<br>۱ – څوک ویلي چې زمونږ د نننی لوست عنوان څه شی ؤ؟<br>۲ – څوک کولای شي ووایي چې تر ټولو غوره مسلمان څوک دی؟<br>کورنۍ دنده:<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې یو ځل لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ۵ دقیقې<br><br>وخت ۲۵ دقیقې<br><br>وخت ۱۰ دقیقې<br><br>۵دقیقې |

**لوست: دویم**

**عنوان: د قرآن کریم فضیلت**

**مخ:**

**وخت:** یودرسی ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې: شاګردان باید:**

- د قرآن کریم له فضایلو سره اشنا شي.
- وکولای شي د قرآن کریم فضیلتونه نورو ته بیان کړي.
- د قرآن کریم د تلاوت سره يې لیوالتیا پیدا شي.

**اړین معلومات**

د قرآن کریم تلاوت عبادت دی باید چه د تلاوت په ارزښت یې پوه شو، رسول اللهﷺ فرمایلي دي کله چې یو مسلمان د سهار د لمانځه څخه وروسته دوه آیتونه زده کړي او یا یې تلاوت کړي نو د هر آیت په بدل کې ورته الله جل جلاله د یو غټ (چاغ) اوښ په اندازه ثواب ورکوي، نو څومره چې د آیتونو شمیر زیات وي په هماغه کچه یط د ثواب اندازه پورته کېږي.

**د تدریس تګلاره:** مطالعه، سوال او جواب، انفرادي .

مرستندیه توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور .

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښوونکی محترم له احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخستلو څخه وروسته د لاندې سوال په کولو سره د تیر لوست ارزونه کوي: څوک کولای شي ووایي چې غوره مسلمان څوک دی؟<br>– د نوي لوست د سرلیک (د قرآن کریم فضیلت) له | |

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۲۵ دقیقې | لیکلو څخه وروسته د شاګردانو پام کتاب ته را اړوي او لوست په مناسب آواز سره لولي، وروسته په دریو زده کوونکو لوست تکراروي او تر څنګه یې د ټولګي نظم هم په پام کې نیسي او ښوونکي پخپله په ټولګي کې په قدم وهلو سره ټولګی تر څار لاندې نیسي تر څو یې نظم ګډ وډ نه شي او د غلطیو پر مهال د زده کوونکو غلطیانې اصلاح کوي.<br>– شاګردانو ته لارښوونه کوي تر څو هر یو د خپل ملګري سره د قرآن کریم د فضیلت په اړه خبرې وکړي. | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>زده کوونکي په چوپتیا سره لوست تکراروي.<br>زده کوونکي دوه دوه نفر سره یو ځای کیږي او په خپلو کې سره د قرآن کریم د فضیلت په اړه خبرې کوي . |
| ۵ دقیقې | **لنډیز:**<br>د قرآن کریم لوستل عبادت دی.<br>قرآن کریم په عربي ژبه نازل شوی دی . | – خلور زده کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او هر یو په خپل وار سره فعالیت تر سره کوي او ټول زده کوونکي خپلو فعالیتونو ته متوجه کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>په لاندې پوښتنو سره د لوست ارزونه کیږي.<br>۱ – څوک کولای شي ووایي چې زمونږ د لوست سرلیک څه شی دی؟<br>۲ – څوک کولای شي ووایي چې قرآن کریم په کومه ژبه نازل شوی دی؟<br>۳ – څوک کولای شي ووایي د قرآن کریم په لوستلو سره مسلمان ته څه شی ورکول کیږي؟ | – زده کوونکي پوښتنې ځوابوي. |

**لوست: دریم**

## سرلیک: د البقرة سورت (۶۰) آیت

**صفحه:**

**وقت:** یو درسی ساعت (۴۵) دقیقې .

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د لوست له آیتونو سره اشنا شی.
- د لوست آیتونو په سمه توګه تلاوت کړای شی .
- د لوست له آیتونو سره لیوالتیا ولري.

**اړین معلومات:**

د (لِقَوْمِـهِ) په کلمه کې د لین مد دی، ځکه چې د (و) له حرف څخه مخکې چې ساکن دی د فتحې (زور) حرکت راغلی دی .

(فَقُلْنَا اضْرِب) کې د (فَقُلْنَا) په کلمه کې نون د ضاد له حرف سره تړل شوی دی، چې په پایله کې د (اضْرِب) کلمې همزه ساقطه شوې، ولې د الف په شکل کې لیکل شوې ده، او تلفظ پرې نه کیږي .

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښوونکی له احوال پوښتنې، حاضری اخستلو، او ټولګي تنظیمولو څخه وروسته نوی لوست په لاندې پوښتنو سره ارزوي. مثلاً<br>– څوک کولای شي د تیر لوست دریمه برخه ووایي؟ | |
| ۲۵ دقیقې | – پر تختې د نوي لوست د سرلیک (د البقرة سورت ۶۰) آیت له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب آواز سره لولي.<br>– وروسته زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپیتیا سره ولولي، او ښوونکی محترم پخپله د ټولګي د ننه قدم وهي او د زده کوونکو تر منځه ګرځي او هغوی څاري او ستونزې یې حلوي.<br>– همدا رنګه خو تنو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو په نوبت سره لوست ولولي او نور زده کوونکي یې ورپسې تکراروي، او تر څنګه یې | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>زده کوونکي لوست په چوپتیا سره لولي. |

| | | |
|---|---|---|
| | ښوونکی ټولګي کنترولوي او د ګډوډيو مخه نيسي.<br>– وروسته له شپږو نورو زده کوونکو څخه غواړي چې هر يو په خپل نوبت سره په ناستې د لوست ټول پراوونه په کره توګه ولولي او پخپله ټولګی کنترولوي او د زده کوونکو غلطياني اصلاح کوي.<br>– وروسته د لوست په پای کې د جدول لغتونه پر تخته ليکي او شاګردان يې ورپسې ليکي.<br>– له دوو نورو زده کوونکو څخه غواړي چې هر يو په خپل وار د تختې مخې ته راشي او پر تخته ليکل شوې کلمې بيا وليکي او ښوونکی ورسره مرسته کوي. | څلور زده کوونکي هر يو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راځي او خپل فعاليت تر سره کوي او نور زده کوونکي د دوی فعاليت ځاري.<br>شپږ نور زده کوونکي په خپل وار سره ورسپارل شوی فعاليت تر سره کوي او نور زده کوونکي ورته متوجه کيږي. |
| ۵ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱ – څوک کولای شي د لوست لومړۍ برخه ولولي؟<br>۲ – څوک کولای شي د (فانفجرت) کلمه پر تخته وليکي؟<br>۳ – څوک کولای شي د لوست دويمه برخه ولولي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| ۱۰ دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست پخپلو کورونو کې لس ځلې ولولي. | |

**لوست: څلورم**

## سرلیک: د البقرة سورت (۶۰ ــــــ۶۱) آیتونه

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې.

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د لوست د آیتونه سره اشنا شي.
- د لوست آیتونو په سمه توګه تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیتونو د لوستلو سره لیوالتیا ولري.

**اړین معلومات**

په (من رزق الله) کې د تجوید څو حکمونه پراته دي؟

- له نون ساکن څخه وروسته د (ر) توری راغلی او (ر) د اغام له تورو څخه یو توری دی ولې بی غُنې توری دی ځکه چې د خیشوم د آخري برخې څخه ادا کیږي.
- د (ر) توری مکسور دی نو له دې امله باریک ادا کیږي.
- د (الله) لفظ هم پدې ځای کې باریک اداء کیږي، ځکه د تجوید قاعده وایي هر هغه ځای کې چې د (الله) لفظ او ورڅخه وړاندې توری مفتوح (زور لرونکی) یا مضموم(پېښ لرونکی) وي نو ډک ادا کیږي او که چیرته د (الله) د لفظ څخه وړاندې توری مکسور (زیر لرونکی) وي نو تش ادا کیږي. د یادولو وړ ده چې د (ر) توری هم نفس حکم لري.

**د تدریس تګلاره:** مطالعه، سوال او جواب، په انفرادي توګه.

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور...

| د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. | محترم ښوونکی له احوال پوښتنې، تـولګي تنظیمولـو او حاضرۍ اخستلو څخه وروسته د څو پوښتنو په کولـو سـره لوست ارزوي لکه:<br>– څوک کولای شي د تیر لوست دریمه برخه ووایي؟<br>– پر تختې د نوي سـر لیـک (د البقـرة سـورت ۶۰ــــــ ۶۱)آیتونو له لیکلو څخه وروسـته زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او د لوسـت ټول پړاوونه پر مناسب آواز لولي. | ۵ دقیقې<br>۲۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| | - له دې څخه وروسته څو تنه زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي تر څو هر یو په خپل وار سره د تختې پر مخ لوست ولولي، ولې د لوست لومړۍ او دویمه برخه چې کله وایي نو زده کوونکي یې ورپسې تکراروي، کله چې د لوست دریمې برخې ته راورسیږي نور زده کوونکي ورته غوږ نیسي او لوست ورپسې نه تکراروي. | |
| زده کوونکي لوست په چوپتیا سره لولي. | - له زده کوونکو څخه غواړي چې په چوپتیا سره لوست ولولي او پخپله د ښوونځي دننه قدم وهي او د زده کوونکو تر منځه ګرځي او ستونزې یې حلوي. | |
| څلور زده کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او هر یو په خپل وار سره ورکړ شوی فعالیت تر سره کوي او نور زده کوونکي ورته ګوري. | - همدارنګه څو تنو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو په خپل وار سره د لوست لومړۍ برخه ووایي او نور زده کوونکي یې ورپسې تکراروي او محترم ښوونکی ټولګی څاري او د ګډوډۍ مخه نیسي. | ۵ دقیقې |
| شپږ زده کوونکي ورکړل شوی فعالیت تر سره کوي او نور زده کوونکي ورته ګوري. | - وروسته له شپږو نورو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د لوست ټولې برخې په کره توګه ولولي او پخپله ټولګی کنترولوي او د لوست اړوند ستونزې حلوي. | ۱۰ دقیقې |
| | - وروسته پر تخته د لوست لغتونه لیکي، ښوونکی لغتونه وایي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي.<br>- له دوو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د تختې مخې ته راشي او پر تخته له لیکل شوو لغتونو څخه یو و ټاکي او بیا یې ولیکي. او محترم ښوونکی ورسره مرسته کوي. | |
| زده کوونکي د ښوونکي سوالونو ته ځوابونه وایي. | **ارزونه:**<br>۱ – څوک کولای شي د لوست لومړۍ برخه ووایي؟<br>۲ – څوک کولای شي د (من رزق الله) کلمه پر تخته ولیکي؟<br>۳ – څوک کولای شي د لوست دویمه برخه ووایي؟ | |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي چې په خپلو کورونو کې لوست لس ځلې تکرار کړي. | |

**لوست: پنځم**

## سرلیک: د البقرة سورت د (۶۱) آیت دویمه برخه

**صفحه**

**وخت: یو درسی ساعت (۴۵) دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست له آیتونو سره اشنایي پیدا کړي.
- د لوست آیتونه په سمه توګه تلاوت کړای شي.
- د لوست له آیتونو سره یې لیوالتیا پیدا شي.

**اړین معلومات**

د (فادٔعُ) په کلمه کې د دال په توري کې صغرى قلقله کیږي ځکه چې د دال توری د کلمې په منځ کې راغلی او ساکن واقع شوی دی .

د (مِن بَقۡلِهَا) په کلمه کې اقلاب دی، دا ځکه چې له ساکن نون څخه وروسته د (ب) توری راغلی دی.

همدارنګه پدې کلمه کې صغرى قلقله هم کیږي ځکه چې د (ق) توری د قلقلې له تورو څخه دی او دلته ساکن واقع شوی دی .

د (قِثَّآئِهَا) په کلمه کې د (ث) توری مشدد دی نو باید چې د تشدید حق یې پر ځای شي او له خپل مخرج څخه ادا شي.

د تدریس تګلاره: مطالعه، سوال او ځواب، په انفرادي توګه .

مرستندویه توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| | محترم ښوونکی له احوال پوښتنې، تولګي تنظیمولو او حاضری اخستلو څخه وروسته تیر لوست د یوې پوښتنې په کولو سره ارزوي. لکه:<br>– څوک کولای شي د لوست اوله برخه ووایي؟ | ۵ دقیقې |
| زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. | پر تختې د نوي لوست عنوان (د البقرة سورت د ۶۱ آیت دویمه برخه) له لیکلو څخه وروسته زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په مناسب آواز سره لولي. | ۲۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| زده کوونکي په چوپتیا سره لوست لولي.<br><br>زده کوونکي ورسپارل شوی فعالیت تر سره کوي..<br><br>شپږ زده کوونکي په خپل وار سره ورکړل شوی فعالیت تر سره کوي او نور زده کوونکي ورته ګوري .<br><br>زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. | – دریو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو په خپل وار سره په ناستې له خپل ځای څخه د لوست دویمه برخه ولولي او نور زده کوونکي د لوست کلمې ورپسې په مناسب آواز سره تکراروي.<br>– همدارنګه څو نورو زده کوونکو ته دنده سپارې چې هر یو په خپل وار سره د چوکاټ یوه کرښه ولولي او نور زده کوونکي یې ورپسې تکراروي.<br>او محترم ښوونکي زده کوونکي لا پسې هڅوي.<br>– وروسته د لوست په پای کې د جدول کلمات په تخته لیکي او په زده کوونکو یې تکراروي.<br>– له دوه نورو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار د ټولګي مخې ته راشي او پر تخته له لیکل شوو لغتونو څخه یو یو ولیکي او محترم ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br><br>**ارزونه**<br>۱ – څوک کولای شي د لوست لومړۍ برخه ووایي؟<br>۲ – څوک کولای شی د (عدسها) کلمه پر تخته ولیکي.؟<br>۳ – څوک کولای شی د لوست دویمه برخه ووایي؟<br><br>**کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په کورونو کې لس ځلې تکرار کړي. | |

**لوست: شپږم**

## سرلیک: د البقرة سورت د (۶۱) آیت دریمه برخه

**صحفه:**

**وخت: یو درسی ساعت (۴۵) دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست له آیت سره اشنا شي.
- وکولای شي د لوست آیت تلاوت کړي.
- د لوست له آیت سره لیوالتیا پیدا کړي.

**اړین معلومات**

د (خَیْرٌ) په کلمه کې د لین مد دی ځکه چې د (ی) توری ساکن دی او ورڅخه وړاندې مفتوح توری واقع شوی دی، همدارنګه د (ر) توری په نوموړې کلمه کې ډک لوستل کیږي ځکه چې ماقبل توری یې ساکن دی او له هغې څخه وړاندې توری مفتوح راغلی دی نو (ر) ډکه لوستل کیږي.

د «ر» اړوند قاعده وایي چې د (ر) توری کله پخپله مفتوح (زور لرونکی) یا مضموم (پیښ لرونکی) واقع شي نو ډک لوستل کیږي.

د (بَآؤُوْا) په کلمه کې متصل مد راغلی دی ځکه چې د مد توری (الف) او د مد سبب (همزه) دواړه په یوه کلمه کې راغلي دي نو متصل مد پکې کیږي.

د (مِنَ اللهِ) په کلمه کې لفظ الجلاله (الله) ډک اداء کیږي ځکه چې ورڅخه وړاندې توری مفتوح راغلی دی.

د تدریس کړنلاره: مطالعه، سوال او ځواب، په انفرادي توګه .

مرستندویه توکي: کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور .

| د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>زده کوونکي په چوپتیا سره لوست لولي.<br>زده کوونکي ورسپارل شوی فعالیت تر سره کوي.<br>شپږ زده کوونکي په خپل وار سره ورکړل شوی فعالیت تر سره کوي او نور زده کوونکي ورته ګوري .<br>زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. | محترم ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخستلو څخه وروسته نوی لوست د د یوې پوښتنې په کولو سره پیلوي لکه:<br>– څوک کولای شي د لوست دریمه برخه ووایي؟<br>پر تختې د نوي لوست عنوان (د البقرة سورت د ٦١ آیت دریمه برخه) له لیکلو څخه وروسته زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په مناسب آواز سره لولي.<br>– دریو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو په خپل وار سره د لوست لومړۍ برخه ولولي، او نور زده کوونکي د لوست کلمې ورپسې په مناسب آواز سره تکراروي.<br>– همدارنګه څو نورو زده کوونکو ته دنده سپارې چې هر یو په خپل وار سره د چوکاټ یوه کرښه ولولي او نور زده کوونکي یې ورپسې تکراروي<br>او محترم ښوونکي زده کوونکي لا پسې هڅوي.<br>– وروسته د لوست په پای کې د جدول کلمات په تخته لیکي او په زده کوونکو یې تکراروي.<br>– له دوه نورو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار د ټولګي مخې ته راشي او پر تخته له لیکل شوو لغتونو څخه یو یو ولیکي او محترم ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>**ارزونه**<br>۱ – څوک کولای شي د لوست لومړۍ برخه ووایي؟<br>۲ – څوک کولای شي د (عدسها) کلمه پر تخته ولیکي.؟<br>۳ – څوک کولای شي د لوست دویمه برخه ووایي؟<br>**کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په کورونو کې لس ځلې تکرار کړي. | ۵ دقیقې<br><br><br><br><br>۲۵ دقیقې |

**لوست: اووم**

**سرلیک: د البقرة سورت د (۶۱) ایت څلورمه برخه**

**صفحه:**

**وخت: يو درسی ساعت (۴۵) دقيقې**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست له آیت سره اشنا شي .
- وکولای شي د لوست آیت ووايي.
- د لوست له آيت سره يې ليوالتيا پيدا شي.

**اړین معلومات**

- د (ٱلنَّبِيِّينَ) په کلمه کې بايد کره پاملرنه وشي تر څو د (ی) دواړه توري په سمه توګه ادا شي.

همدا رنګه د (عَصَوا۟) په کلمه کې د لين مد دی، ځکه چې د ساکن (غړوندي لرونکي) واو توري څخه مخکې د فتحې (زور) حرکت راغلی دی.

د نني لوست (٦١) آیت په وروستۍ برخه کې الله جل جلاله د هغه عذاب په اړه وينا کوي چې پر بني اسرائيلو يې نازل کړی و لکه چې فرمايي: (دا يې پايله وه چې هغو د الله جل جلاله له آيتونو نه انکار شروع کړ او د پيغمبرانو په ناحقه وژلو يې لاس پورې کړ، دا يې نتيجه وه د هغو نافرمانيو او د دې خبرې چې هغوی د شريعت له پولو نه پر له پسې پښې اړولې). په حقيقت کې دا د هر انسان لپاره د قيامت تر ورځې پورې ويرول او پند دی.

د تدريس تګلاره: مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

کومکي مرستندويه توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور .

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې<br><br><br><br>۲۵ دقيقې | محترم ښوونکی له احوال پوښتنې، د ټولګي برابرولواو حاضرۍ اخستلو څخه وروسته زوړ لوست د څو سوالونو په کولو سره ارزوي مثلاً.<br>- څوک کولای شي د تیر لوست دريمه برخه په سمه توګه ووايي؟<br>- پر تختې د نوي لوست د سرليک (د البقرة سورت د ٦١ آيت څلورمه برخه) له ليکلو څخه وروسته زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او د لوست ټولې برخې په مناسب آواز سره لولي.<br>- وروسته دريو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر يو په خپل وار سره لوست تکرار کړي.<br>- همدا رنګه څلور نورو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر يو په خپل وار سره د لوست له دويمې برخې څخه يوه يوه کرښه ولولي او نور زده کوونکي يې ورپسې تکراروي، محترم ښوونکی يې لا پسې | زده کوونکي لوست ته غوږ نيسي. |

| | | |
|---|---|---|
| | تشویقوي.<br>– وروسته زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپتیا سره ولولي او پخپله ښوونکی ټولګی څاري او د زده کوونکو ستونزې حلوي.<br>– بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو د خپل څنګ له ملګري سره د لوست ټولې برخې تکرار کړي، پدې وخت کې ښوونکی زده کوونکي څاري، غلطیانې او په لوست کې اشتباهات یې اصلاح کوي.<br>– بیا د لوست لغتونه د تختې پر مخ لیکي او زده کوونکو ته یې وایي.<br>– له دوو نورو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د تختې مخې ته راشي او له لیکل شوو لغتونو څخه یو وټاکي او بیا یې د تختې پر مخ ولیکي، ښاغلی ښوونکی ورسره مرسته کوي. | زده کوونکي لوست په چوپیتا سره لولي. |
| | **ارزونه:**<br>۱ – څوک کولای شي د لوست لومړۍ برخه ووایي؟<br>۲ – څوک کولای شي د (عصوا) کلمه د تختې پر مخ ولیکي.<br>۳ – څوک کولای شي د لوست دویمه برخه ووایي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لس ځلې لوست په کورونو کې ولولي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. |

**لوست: اتم**

## سرلیک: د البقرة سورت د (۶۲) آیت تلاوت

**صفحه:**

**وخت: یو درسی ساعت (۴۵) دقیقې.**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست له آیت سره اشنا شي.
- د لوست آیت په سمه توګه تلاوت کړای شي .
- د لوست له آیت سره یې لیوالتیا پیدا شي .

**اړین معلومات**

د آیت ژباړه: (باور ولرئ هر څوک چې پر محمد صلی الله علیه وسلم د ایمان مدعیان وي، یا یهودیان وي، عیسایان وي یا صابیان وي، نو څوک چې پر الله جل جلاله او د آخرت پر ورځ ایمان راوړي او غوره عمل وکړي، د هغو اجر د هغو له رب سره دی او د هغو له پاره هېڅ وېره او غم نشته.

تفسیر: د الله جل جلاله دا لورینه د ځانګړو خلکو لپاره نده، بلکه شرط یې راسخ ایمان او نیک عمل دی، نو هر څوک چې پدې شرط برابر و ثواب ورته رسیږي. دا آیت الله جل جلاله هغه مهال نازل کړ کله چې په بني اسرائیلو کې یو ډول غرور پیدا شو او ویل به یې چې مونږ د پیغمبرانو اولاده یو او د ټولو امتونو او ملتونو تر منځ غوره خلک یو.

یهود د موسی علیه السلام امت ته او نصارا د حضرت عیسی علیه السلام امت ته ویل کیږي، او صابئین هغه ډله ده چې په الله او آخرت او د انبیاوو په دین اقرار کوي خو دستورو په خیر او شر رسولو هم عقیده لري او وایي چې ستوري د انسان په تقدیر بدلولو کې اغیز لري نو ځکه دوی شرک ته لږدې دي.

د تدریس تګلاره: مطالعه، سوال او جواب او په انفرادي توګه .

مرستندویه توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور..

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي برابرولو او حاضرۍ اخستلو څخه وروسته په تیر لوست کې د څو پوښتنو په کولو سره نوی لوست پیلوي مثلاً:<br>– څوک کولای شي د تیر لوست دویمه برخه ووایي؟ | |
| ۲۵ دقیقې | پر تخته د نوي لوست د سرلیک (د البقرة سورت ۶۲ آیت) له لیکلوڅخه وروسته، د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او د لوست ټول پړاوونه په مناسب غږ سره لولي.<br>– دریو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو په | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | خپل وار له خپل ځای څخه د لوست لومړۍ برخه ولولي او نور زده کوونکي يې ورپسې تکراروي.<br>– همدارنګه څلورو نورو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر يو په خپل وار سره د تختې له مخې د لوست يوه يوه کرښه ووايي، نور زده کوونکي يې ورپسې تکراروي او ښوونکی محترم يې تشويقوي.<br>– زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپتيا سره ولولي او پخپله ښوونکی ټولګی څاري او د زده کوونکو د لوست اړوند ستونزې حلوي.<br>– زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر يو په خپل ځای کې د لوست ټولې برخې ووايي او ښوونکی يې غلطياني اصلاح کوي.<br>– له دې څخه وروسته د لوست اړوند لغات د تختې پر مخ ليکي او پر زده کوونکو يې مشق کوي.<br>– له دوو زده کوونکو څخه غواړي چې هر يو په خپل وار سره د تختې مخې ته راشي او له ليکل شوو لغتونو څخه يو وټاکي او بيا يې د تختې پر مخ وليکي او محترم ښوونکی ورسره پدې اړه لازمه مرسته کوي. | زده کوونکي لوست په چوپتيا سره تکراروي.<br><br>شپږ زده کوونکي هر يو په خپل وار سره ورسپارل شوی فعاليت تر سره کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>– څوک کولای شی د لوست لومړۍ برخه ووايي؟<br>– څوک کولای شي د (خوف) کلمه د تختې پرمخ وليکي؟<br>– څوک کولای شي د لوست دويمه برخه ووايي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لس ځلې لوست په کورونو کې تکرار کړي او بيا يې د جومات ملا امام ته تير کړي. | زده کوونکي د ښوونکي سوالونو ته جواب وايي. |

**لوست: نهم**

**سرلیک: د البقرۀ سورت د(۶۳) آیت تلاوت**

**صفحه:**

**وخت: یو د رسی ساعت (۴۵) دقیقې.**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست له آیت سره بلد شی.
- د لوست آیت په سمه توګه تلاوت کړای شي.
- د لوست له آیت سره یې لیوالتیا پیدا شي.

**اړین معلومات:**

- د تلفظ پر مهال باید د (ذ) او (ث) تورو تر منځ توپیر وشي او هر یو یې په جلا توګه باید له خپل مخرج څخه اداءشي تر څو د (ذ) توری د (ز) په څیر او د (ث) توری د (س) په څېر تلفظ نه شي.
- د (بِقُوَّةٍ وَّاذۡكُرُوا۟) په کلمه کې له غُنې سره ادغام کیږي نو باید د تلاوت پر مهال رعایت شي.
- د آیت ژباړه (دریاد کړئ هغه وخت چې کله مونږ د طور غر پر تاسې را پورته کړ او له تاسې نه مو تعهد اخستی ؤ او ویلي مو وو ونیسئ کوم کتاب چې مونږ درکوو په کلکې ساتنې سره او په هغه کې درج شوي حکمونه او لاربنوونې زده کړئ په دې توګه کېدای شي چې تاسې د پرهیزګاری چلند غوره کړای شئ»
- تفسیر: کله چې تورات نازل شو نو بني اسرائیلو به ویل چې احکام یې درانده دي او زمونږ له وسې پوره نده چې عمل پرې وکړو، نو د الله جل جلاله په امر غر پورته شو او په سرونو یې د پاسه ودریده او له بله پلوه یې د اور په لمبو مخه ونیول شوه تر څو د تیښتې لار ورته هم پاتې نه شي، دلته یو اعتراض واردیږي هغه دا چې د تورات آیتونه پر بني اسرائیلو په زوره منل شوي دي او دا کار د الله تعالی د دې قول سره په تضاد کې راځي چې فرمایي (لَآ إِكۡرَاهَ فِي ٱلدِّينِ).

نو د اعتراض او نیوکې ځواب پدې شکل کیدای شي چې پر بني اسرائیلو باندې دین په زوره نه ؤ منل شوی ځکه هغوی تر دې وړاندې په خپله خوښه دین قبول کړی ؤ، تر دې چې څو څو ځله یې له موسی علیه السلام څخه د اسماني کتاب غوښتنه کړې وه چې احکامو ته شامل وي تر څو پرې عمل وکړي او دلته خو بني اسرائیلو تعهد سپارلی ؤ، نو کله چې تورات نازل شو خپله وعده یې ماته کړه، نو د غره د پورته کیدلو لامل د تعهد څخه د بنی اسرائیلو سر غړونه وه، نه د دې لپاره ترڅو دین په زوره پرې ومني.

د تدریس تگلاره: مطالعه، سوال جواب او په انفرادي توگه .

مرستندویه توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور..

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخستلو څخه وروسته د څو پوښتنو په کولو سره نوی لوست پیلوي مثلاً:<br>– څوک کولای شي د تیر لوست لومړۍ برخه ووایي؟<br>– پر تختې د نوي لوست سرلیک (د البقرة سورت ٦٣ آیت) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام کتابونو ته اړوي او د لوست ټولې برخې په مناسب آواز سره لولي. | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| ۲۵ دقیقې | – دریو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو په خپل وار سره لوست ووایي او نور زده کوونکي یې ورپسې تکراروي.<br>– دریو نورو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو په خپل وار سره د لوست له دویمې برخې څخه یوه یوه کرښه ووایي او نور زده کوونکي یې ورپسې تکراروي، محترم ښوونکی یې لاپسې هڅوي او مرسته ورسره کوي.<br>– وروسته زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپتیا سره ولولي او پخپله ټولګی خاري او د لوست اړوند ستونزې حلوي.<br>– وروسته د لوست په پای کې د جدول لغتونه د تختې پر مخ لیکي او پر زده کوونکو یې مشق کوي (تکراروي).<br>– لدې څخه وروسته له دوو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو د ټولګي مخې ته راشي او د تختې پر مخ له لیکل شوو لغتونو څخه یو و ټاکي او بیا یې ولیکي، پدې اړه ښوونکی محترم ورسره همکاري کوي. | زده کوونکي لوست په چوپتیا سره لولي.<br>شپږ زده کوونکي هر یو په خپل وار سره ورکړل شوی فعالیت تر سره کوي او نور زده کوونکي د دوی فعالیتونه څاري. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ – څوک کولای شي د لوست لومړۍ برخه ووایي؟<br>۲ – څوک کولای شي د (اخذنا) کلمه د تختې پر مخ ولیکي.<br>۳ – څوک کولای شي د لوست دویمه برخه ووایي؟. | زده کوونکي سوالونو ته ځوابونه وایي. |
| ۱۰ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست لس ځلې په خپلو کورونو کې د ځان سره تکرار کړي. | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |

**لوست : لسم**

## سرلیک:د البقرة سورت د (۶۴) آیت تلاوت

**صفحه:**

**وخت : یو درسی ساعت (۴۵) دقیقې .**

**موخې: زده کوونکي باید**

- د لوست له آیت سره اشنا شي.
- د لوست آیت په سمه توګه تلاوت کړای شي .
- د لوست له آیت سره یې لیوالتیا پیدا شي .

**اړین معلومات**

د (مِن بَعْدِ) په کلمه کې اقلاب دی ځکه چې پدې ځای کې له ساکن نون څخه وروسته د (ب) توری راغلی دی او قاعده داسې ده چې هر کله له ساکن نون او تنوین څخه وروسته د (ب) توری راشي نو نون او تنوین دواړه په میم سره بدلیږي، نو دلته هم ذکر شوی نون په میم سره بدلیږي.

**د (٦۴) آیت ژباړه:**

خو له هغه وروسته تاسې له خپل لوظ نه واوښتئ ددې له پاسه هم د الله مهرباني او رحمت ستاسې ملګرتیا پرینښوده که نه نو تاسې تباه کیدئ.

د تدریس کړنلاره: مطالعه سوال ځواب او په انفرادي توګه .

مرستندویه توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور .

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br><br><br><br><br>۲۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخستلو څخه وروسته د څو پوښتنو په کولو سره لوست ارزیابي کوي مثلاً.<br>– څوک کولای شي د لوست لومړۍ برخه ووایي؟<br>– ښوونکی محترم پر تختې د نوي لوست د سرلیک (د البقرة سورت ٦۴ آیت) له لیکلو څخه وروسته زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او د لوست ټولې برخې په مناسب آواز سره لولي.<br>– څلورو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو په خپل وار سره لوست ووایي او نور زده کوونکي یې وروپسې تکراروي.<br>– همدارنګه دریو نورو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو په خپل وار سره د لوست یوه یوه کرښه ووایي او نور زده | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | کوونکي یې ورپسې تکراروي او د ښوونکي له لوري لا پسې نور هم هڅول کیږي.<br>– وروسته زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپتیا سره ولولي او په خپله ټولګی څاري او ټولګی بی نظمۍ ته نه پریږدي.<br>– وروسته له شپږو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو د لوست ټولې برخې په ځیرکتیا سره لولي، محترم ښوونکی د زده کوونکو غلطیانې سموي . | زده کوونکي لوست په چوپتیا سره مطالعه کوي . |
| ۱۰ دقیقې | – وروسته د لوست په پای کې د جدول لغتونه د تختې پر مخ لیکي او پر زده کوونکو یې تکراروي.<br>– له دوه نورو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د تختې له مخې یوه کلمه و ټاکي او بیا یې ولیکي او محترم ښوونکی ورسره پدې اړه مرسته کوي.<br>**ارزونه:**<br>۱ – څوک کولای شي د لوست لومړۍ برخه ووایي؟<br>۲ – څوک کولای شي د (ذلک) کلمه د تختې پر مخ ولیکي؟<br>۳ – څوک کولای شي د لوست دویمه برخه ولولي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي چې هر یو لوست په کور کې لس ځلې د ځان سره تکرار کړي او باید ښوونکي ته داسې ثبوت وړاندې کړي، تر څو ښوونکی وپوهیږي چې زده کوونکو په رښتیا سره هم دنده تر سره کړې ده. | شپږ زده کوونکي هر یو په خپل وار سره ور سپارل شوی فعالیت تر سره کوي او نور زده کوونکي د دوی فعالیتونه څاري.<br><br>زده کوونکي سوالونو ته ځوابونه وایي؟ |

## لوست: یوولسم

## سرلیک: د البقرة سورت (۶۵) آیت

**مخ:**

**وخت: یو درسی ساعت (۴۵) دقیقې.**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست له آیت سره اشنا شي.
- د لوست آیت په سمه توګه تلاوت کړای شي.
- د لوست له آیت سره یې لیوالتیا پیدا شي.

**اړین معلومات**

د (مِنكُمْ، قِرَدَةً، خَاسِئِينَ) په کلماتو کې د نون ساکن او تنوین له حکمونو څخه اظهار او اخفا راغلي دي.

د لوست د آیت ژباړه:

او تاسې ته خو د خپل قوم د هغو کسانو سرګذشت پوره څرګند دی چې هغو د سبت (شنبې) قانون مات کړی ؤ، مونږ هغو ته وویل چې بیزوګانې شئ او پداسې حال کې اوسئ چې له هرې خوا درباندې ذلت، نفرین او لعنت وي.

تفسیر:

د تورات د احکامو سره سم بنی اسرائیل پدې مکلف وو چې د شنبې ورځ باید د عبادت لپاره ځانګړې کړې پدغه ورځ د کبانو ښکار و نه کړي، ولې هغوی د فریب، دوکې او چل له لارې د شنبې په ورځ کبان ښکار کول، د دوی د چل او فریب په پایله کې الله جل جلاله هغوی مسخ کړل او شادیانې او بیزوګان یې وګرځول، ولې عقل او شعور پکې پاتې وه یو بل ته به یې کتل او ژړل به یې خو خبرې یې نه شوای کولی، د نورو د پند له پاره درې ورځې ژوندي پاتې شول بیا ورپسې مړه شول، دغه پېښه د پیغمبر داود علیه السلام په زمانه کې پېښه شوې وه او د الاعراف په سورت کې په بشپړه توګه ذکر شوې ده .

د تدریس کړنلاره: مطالعه، سوال او ځواب او په انفرادي توګه.

مرستندویه توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې ټولګي برابرولو او حاضرۍ اخستلو څخه وروسته د څو پوښتنو په کولو سره نوی لوست پیلوي مثلاً:<br>- څوک کولای شي د (ذلک) کلمه د تختې پر مخ ولیکي؟<br>- پر تختې د نوي لوست د سرلیک (د البقرة سورت | |
| ۲۵ دقیقې | ۶۵ آیت) له لیکلو څخه وروسته زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او د لوست ټول پړاوونه په | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |

| | | |
|---|---|---|
| | مناسب آواز سره لولي.<br>– څلورو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو په خپل وار سره د لوست لومړۍ برخه یو د بل پسې وایي او نور زده کوونکي یې ورپسې تکراروي .<br>– همدا رنګه څلورو نورو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست دویمه برخه وایي او هر یو به په خپل وار سره د چوکاټ یوه یوه کرښه وایي او نور زده کوونکي یې وروسته ورپسې تکراروي، د ښوونکي له اړخه لا پسې هڅول کیږي.<br>– وروسته زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپتیا سره ولولي او په خپله ټولګی څاري . | |
| ۵ دقیقې | – وروسته له زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره لوست ولولي او په خپله ښوونکی ټولګی څاري او زده کوونکي کنترولوي او د لوست اړوند ستونزې یې حلوي. | زده کوونکي لوست په چوپتیا سره لولي. |
| | – وروسته د لوست په پای کې د جدول لغتونه د تختې پر مخ لیکي او پر زده کوونکو یې تکراروي. | شپږ زده کوونکي خپل فعالیتونه تر سره کوي او نور زده کوونکي یې څاري. |
| ۱۰ دقیقې | – له دوو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او یو لغت د ځان لپاره و ټاکي او بیا یې ولیکي، محترم ښوونکی ورسره پدې اړه مرسته کوي او لا زیات یې پسې هڅوي. | |
| | **ارزونه:**<br>۱ – څوک کولای شي د لوست لومړۍ برخه ووایي؟<br>۲ – څوک کولای شي د (لَهُمْ) کلمه د تختې پر مخ ولیکي؟<br>۳ – څوک کولای شي د لوست دویمه برخه ووایي؟. | زده کوونکي د ښوونکي سوالونو ته ځوابونه وایي. |

**لوست: دوولسم**

**سرلیک: د البقرة سورت د (۶۶) آیت تلاوت**

**مخ:**

**وخت: یو درسی ساعت (۴۵) دقیقې.**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست له آیت سره بلد شي.
- د لوست آیت تلاوت کړای شي.
- د لوست له آیت سره یې لیوالتیا پیدا شي.

**اړین معلومات**

د آیت ژباړه: پدې ترتیب مونږ د هغو عاقبت د هغې زمانې او وروستیو نسلونو لپاره عبرت او وېرېدونکو لپاره نصیحت و ګرځوه.

تفسیر: دغه جزا چې مو ورکړه پخپله د هغه وخت او له هغوی څخه وروسته د پاتې نسلونو لپاره پند او عبرت دی، یعنې هغو خلکو چې دا پېښه په خپلو سترګو ولیدله او هغه نسلونه چې وروسته له هغوی څخه دنیا ته راځي او د دوی له حالاتو څخه خبرېږي دا به ورته پند او عبرت وي او همدارنګه د پرهیزګارانو لپاره پدې کې پند او نصیحت دی.

د تدریس کړنلاره: مطالعه، سوال جواب او په انفرادي توګه .

مرستندویه توکي: کتاب، تخته، تباشیر او داسې نور ..

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی له احوال پوښتنې، تولګي برابرولو او حاضرۍ اخستلو څخه وروسته د ځو پوښتنو په کولو سره نوی لوست پیلوي مثلاً:<br>ـــ څوک کولای شی د (لَهُمْ) کلمه د تختې پر مخ ولیکي. | |
| ۲۵ دقیقې | پر تختې د نوي سرلیک (د البقرة سورت ٦٦ آیت) له لیکلو څخه وروسته زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او د لوست ټولې برخې په مناسب آواز سره لولي. | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| ۲۵ دقیقې | – ځلورو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو په خپل وار سره له خپل ځای څخه لوست ووایي، نور زده کوونکي یې ورپسې تکراروي.<br>– همدارنګه ځلورو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې هر یو په خپل وار سره د چوکاټ یوه یوه کرښه ولولي او نور زده کوونکي یې ورپسې تکراروي، ښوونکی محترم یې لا پسې هڅوي. | |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – زده کوونکو ته لارښوونه کوې چې لوست په چوپتیا سره مطالعه کړي او په خپله ښوونکی ټولگی کنترولوي او د لوست اړوند ستونزې حلوي.<br>– وروسته له زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو له خپل ځای څخه په ناسته لوست په ځیرکتیا سره ولولي او ښوونکي ټولگی کنترولوي او د زده کوونکو د لوست اړوند ستونزې حلوي.<br>– وروسته د لوست په پای کې د جدول لغتونه د تختې پر مخ لیکي او پر زده کوونکو یې تکراروي.<br>– له دوو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د ټولگي مخې ته راشي او پر تخته له لیکل شوو لغتونو څخه یو و ټاکي او بیا یې ولیکي او پدې اړه ورسره مرسته کیږي او لا پسې هڅول کیږي. | زده کوونکي لوست په چوپتیا سره لولي.<br>شپږ زده کوونکي هر یو په خپل وارسره ورسپارل شوی فعالیت تر سره کوي او نور زده کوونکي ورته گوري. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ – څوک کولای شي د لوست لومړۍ برخه ووایي؟<br>۲ – څوک کولای شي د (بین) کلمه د تختې پر مخ ولیکي؟.<br>۳ – څوک کولای شي د لوست دویمه برخه ولولي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په خپلو کورونو کې لس ځلې ولولي او زده کوونکي باید ښوونکی قانع کړي چې دنده یې تر سره کړې ده . | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. |

**لوست: دیارلسم**

## عنوان: د البقرة سورت (۶۷) آیت

**مخ:**

**وخت: یو درسی ساعت ۴۵ دقیقې.**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست له آیت سره یې بلدتیا پیدا شي.
- د لوست آیت په سمه توګه تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت سره یې لیوالتیا پیدا شي.

**اړین معلومات**

د (الله) په لفظ کې چې کله لام مفتوح (زور لرونکی) او یا مضموم (پېښ لرونکی) وي نو ډک لوستل کیږي، او هر کله چې ورڅخه وړاندې یو توری مکسور راشي نو باریک یعنې تش لوستل کیږي لکه (باﷲِ) څکه د (ب) توری زیر لري .

د آیت ژباړه: او هغه پېښه در یاده کړه چې کله موسی علیه السلام خپل قوم ته وویل چې الله تاسې ته د یوې غوا د ذبح کولو امر کوي – هغوی وویل ایا ته له مونږ سره ټوکې کوې؟ موسی علیه السلام وویل، زه له دېنه خدای ته پناه وروړم چې د جاهلانو غوندې خبرې وکړم.

تفسیر: هغه وخت را په یاد کړئ کله چې عامیل نومی اسرائیلي ووژل شو او قاتل یې نامعلومه و نو موسی علیه السلام د الله جل جلاله په امر سره بنی اسرائیلو ته وویل: تاسې یوه غوا حلاله کړئ او د غوښې یوه ټوټه یې د مړي پر جسد ولګوئ نو هغه به ژوندی شي او خپل قاتل به وښيي، نو بالآخره همداسې وشول او عامیل راژوندی شو او خپل قاتل یې وښوده او ویې ویل چې زه مې خپلو وارثانو د مال په خاطر ووژلم د دې ګواهۍ ورکولو څخه وروسته بیرته مړ شو، بني اسرئیل لومړی د موسی علیه السلام دې خبرې ته حیران پاتی کیدل او ورته یې وویل چې ته پر مونږ ملنډې وهي، دا څنګه کیدای شي چې د یوه مړي پر جسد د غوا د غوښې یوه ټوټه کیږدې او هغه بیرته راژوندی شي، ولې موسی علیه السلام ورته په ځواب کې وویل: تمسخر او ملنډې د بې عقلانو کار دی او د یوه پیغمبر سره نه ښایي چې د بې عقلانو په څېر کارونه وکړي.

| وخت | دښوونکي کړني | د زده کوونکو کړني |
|---|---|---|
| **سريزه ۵ دقيقې** | ښاغلی ښوونکی له حال او احوال او روغبړ څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او بيا د تير لوست ارزونه په څو سوالونو سره کوي، د بيلګې په توګه:<br>۱. څوک کولای شي د البقرة سورت ٦٦ آيت د کتاب له مخې تلاوت کړي؟<br>۲. څوک کولای شي چې (فی السبت) کلمه په تخته وليکي؟<br>۳. څوک (السبت) کلمه هجا کولای شي؟ | زده کوونکي هم له ښوونکي سره روغبړ کوي.<br>پوښتنې ځوابوي. |
| **۲۵ دقيقې** | **د لوست بهير:**<br>وروسته د نوي لوست سرليک د (البقرة سورت ٦٧ آيت) په تخته ليکي او زده کوونکو ته وايي چې دغه آيت د ځانونو سره په چوپه خوله ولولي.<br>بيا ښوونکی لوست ورته پيلوي او ياد شوی آيت ښه په تجويد ورته تلاوت کوي او زده کوونکي يې ورپسې وايي. بيا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په نوبت سره تکرار کړي او د ښوونکي څخه خپلې پوښتنې وکړي. | د لوست په بهير کې فعاله ونډه اخلي |
| **۱۰ دقيقې** | په پای کې زده کوونکي ارزوي مثلاً:<br>**ارزونه:**<br>۱. څوک کولای شي د لوست لومړۍ برخه ووايي؟<br>۲. څوک ويلای شي چې (قال موسی) څه معنا لري؟<br>۳. څوک د لوست دوهمه برخه ويلای شي؟ | پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| **۵ دقيقې** | **کورنۍ دنده:**<br>دنده ورکول کيږي څو لوست په کورونو کې د ملا امام په مرسته ښه زده کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**لوست**: **څوارلسم**

## عنوان: د البقرة سورت ۶۸ آیت

مخ:

وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې

موخې: زده کوونکي بايد:

- د لوست آيت سم ولوستلی شي.
- د لوست له آيت سره أشنايي حاصل کړی شي.
- د لوست له آيت سره ليوالتيا وښيي.

**اړينه پوهه:**

**– په (بَقَرَةٌ لاَّ) کلمه کې بې غنې ادغام شتون لري ځکه له تنوين څخه وروسته د لام حرف راغلی او دا حــرف د ادغام له شپږګونو حرفونو څخه دی.**

**– په (فَارِضٌ وَ) کلمه کې د غنې ادغام دی ځکه له تنوين څخه وروسته (و) حرف راغلی او دا د باغنه حرفونــو څخــه دی. او غنه له هغه غږ څخه عبارت ده چې د قرائت په مهال د پزې له خيشوم (د پزې له وروستی برخې) څخــه تلفــظ کيږي.**

**– په (عوان بين) کلمه کې اقلاب دی ځکه د تنوين څخه وروسته باء حرف راغلی چې د اقلاب حرف دی نو تنوين په (م) سره بدليږي او له همدې وجې په قرأنکريم کې د تنوين پرسر يو وړوکی (م) شتون لري.**

| وخت | دښوونکي کړني | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| **سريزه ۵ دقيقې** | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتنې وروسته ټولګی تنظيموي، حاضري اخلـي او تير شوی لوست ارزوي مثلاً:<br>۱. څوک کولای شي چې د (**أَكُونَ**) کلمه پر تخته وليکي؟ | زده کــوونکي هــم لــه ښوونکي ســره روغبــړ کوي.<br>پوښتنې ځوابوي. |
| **۲۵ دقيقې** | **د لوست بهير:**<br>وروسته د لوست د نوي سرليک په هکله پوښتنه کوي او پرتخته يې ليکي (د بقرې سورت ٦٨ آيت) بيا زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کــوي او لوســت پــه مناسب غږ سره پيلوي.<br>وروسته له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست يو پر بل پسې تکرار کړي بيا څو زده کوونکي هڅوي څو لوست د کتاب له مخې تکرار کړي. | د لوست په بهير کې فعاله ونډه اخلي |

| | | |
|---|---|---|
| | وروسته زده کوونکو که دنده سپاري  څو لوست په پټه خوله ولولي. او  ښوونکی د دوی مشکلات حلوي او دا کړه وړه ترسره کوي چې زده کوونکی ویده او غافله نشي.<br>وروسته د لوست وروستنی جدول د تختې پرمخ لیکي او پـــه زده کوونکـــو یـــې تمرینوي.<br>بیا زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي او یوه یوه کلمه ورباندې پرتخته لیکي. | |
| ۱۰ دقیقې | په پای کې زده کوونکي ارزوي مثلاً:<br>**ارزونه:**<br>۱. څوک کولای شي د لوست لومړی برخه ووایي؟<br>۲. څوک د (بَيْنَ) کلمه پرتخته لیکلی شي؟<br>۳. څوک کولای شي د لوست دوهمه برخه ووایي؟ | زده کوونکي پوښتنو تـــه ځوابونه وایي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په کورونو کې لس ځله ووایـــي او څـــو کلمې یې په کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**لوست: پنځلسم**

## عنوان: د البقرة سورت ۶۹ آیت

**مخ:**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت په سمه توګه ولوستلی شي.
- د آیت د کلمو حرفونه او حرکتونه وپیژني.
- د آیت تلاوت ته لیوالتیا ومومي.

**اړینه پوهه:**

د (صَفْرَاء) په کلمه کې متصل مد راغلی چې له یوه څخه تر شپږو حرکتونو پورې کش کیږي او حکم یې واجب دی یعنې د تلاوت په مهال قاري ته لازمه ده چې د متصل مد حق اداء کړي.

**د آیت ژباړه:**

(یهودیانو) وویل د خپل پروردګار څخه دې زموږ لپاره پوښتنه وکړه څو موږ ته بیان کړي چې ددې غوا رنګ څرنګه دی؟ حضرت موسی علیه السلام وویل: بیشکه الله جل جلاله فرمایي چې په باوري توګه دا داسې ژیړه غوا ده چې ډېره تیزه ژیړه ده او لیدونکي یې په لیدلو خوشالیږي یعنې داسې ژیړ او زړه راښکونکی رنګ لري چې هرڅوک هغه ووینــي د خوښۍ احساس کوي.

**د تدریس طریقه:** مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي، ګروپي.

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د روغبړ، ټولګي منظمولو او حاضرۍ اخستلو او کورنۍ دنــدې کتلو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي – مثلاً:<br>۱. څوک ویلی شي چې د (صَفْرَاء) په کلمه کې کوم مد راغلی دی؟<br>۲. تېر شوی آیت څو ک لوستلی شي؟<br>۳. څوک کولای شي د (يُبَيِّن) کلمه په تخته ولیکي؟ | زده کــــــوونکي ځوابونه وایي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>وروسته د نوي لوست سرلیک د بقرې سورت ٦۹ آیت په تختــه لیکــي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په مناسب غږ سره ورته وایي بیا څلورو زده کوونکو ته امر کوي څو لوست یو په بل پسې د ناستې په حالت کې تکرار کړي او نور زده کوونکي ورته غوږ نیسي.<br>بیا د لوست دوهم او دریم پړاوونه هم تکرارروي او په ځنو زده کوونکو یوه یوه کلمه په تخته هم لیکي او حرکات ورکوي بیا له څو زده کوونکو څخه غــواړي څو د تختې مخې ته راشي او د دویم جدول کلمې په تخته ولیکي او په تــولګي والو یې تلفظ کړي. | زده کوونکي یــې ورپســــــــې تکرارروي.<br>زده کوونکي غوږ نیسي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک کولای شي د لوست لومړۍ مرحله ووایي؟<br>۲. څوک کولای شي د (عَلَیْنَا) کلمه په تخته ولیکي؟<br>۳. څوک کولای شي د لوست دوهمه مرحله ولولي؟ | زده کــــــوونکي ځوابونه وایي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښووه کوي څو لوست لس ځله په کورونو کې ولولي او پــه کتابچو کې یې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**لوست: شپاړلسم**

## عنوان: د البقرة سورت ۷۰ آیت تلاوت

**مخ:**

**وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست له آیت سره أشنایي حاصله کړي.
- د لوست آیت په سمه توګه ولوستلی شي.
- د لوست له آیت سره لیوالتیا وښیي.

**اړینه پوهه:**

د آیت ژباړه: بیا وویل (بني اسرائیلو) وغواړه موږ ته له خپل رب څخه چې بیان کړي موږ ته چې څه ډول ده دغه غوا (کار کوونکې ده او که صحرایي ده؟ بیشکه غوا شبهه اچولې پرموږ (څکه زیړې او څوانې غواګانې ډیرې دي) بیشکه موږ که الله اراده وکړي خامخوا لاړ موندونکي یو.

| وخت | ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له حال پوښتنې، ټولګی تنظیمولو او حاضرۍ اخستلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي مثلاً وایي:<br>۱. څوک کولای شي (یُبَیِّن) کلمه په تختې ولیکي؟<br>۲. څوک کولای شي (فَاقِعٌ لَّوْنُهَا) کلمه د تلفظ په شکل ولیکلي؟ | زده کوونکي ځوابونه وایي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>وروسته ښوونکی د لوست نوی سرلیک د بقره سورت (۷۰) آیت په تخته لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي.<br>بیا ښوونکی ورته لوست لولي او دوی یې ورپسې تکراروي.<br>بیا د لوست دویمه برخه او دریمه برخه لولي او څو زده کوونکو ته دنده ورکوي څو لوست په نوبت سره ولولي او بیا څو زده کوونکي د لوست یوه یوه کلمه په تختې لیکي.بیا له یو زده کوونکي څخه غواړي څو د لوست مکمل آیت ولولي او زده کوونکي یې ورپسې تکرار کړي. | زده کوونکي یې ورپسې تکرارروي.<br><br>زده کوونکي غوږ نیسي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. د لوست لومړۍ مرحله څوک لوستلای شي؟<br>۲. د لوست (عَلَیْنَا) کلمه څوک په تختې لیکلای شي؟<br>۳. د لوست دویمه مرحله څوک لوستلای شي؟ | زده کوونکي ځوابونه وایي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي باید د لوست کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او لوست لس ځله تکرار کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**لوست: اووه لسم**

## عنوان: د البقرة سورت ۷۱ آیت تلاوت

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست له آیت څخه أشنایي حاصله کړي.
- د لوست آیت په ښه توګه ولوستلی شي.
- د لوست آیت سره لیوالتیا وښیي.

**اړینه پوهه:**

د آیت ژباړه: موسیٰ علیه السلام وویل بیشکه الله جل جلاله فرمایي خامخوا دا یوه غوا ده چې نه رېړایستونکې ده چې ځمکه قلبه کوي او نه په (اړېټ سره) کښت اوبه کوي (بنی اسرائیلو) وویل (موسیٰ علیه السلام ته) چې اوس دې روښانه خبره راوړه، نو حلاله یې کړه هغه غوا او نه وو دوی نږدې دې خبرې ته چې دا کار به یې کړی وای.

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له روغبړ اوحال پوښتنې، ټولګی تنظیمولو، حاضرۍ اخستلو، کورنۍ دندې کتلو څخه وروسته تیر شوی لوست ارزوي لکه:<br>۱. څوک کولای شي د (غَلَبَنَا) کلمه پر تختې ولیکي؟<br>۲. تیر شوی لوست څوک د کتاب له مخې ویلای شي؟ | زده کوونکي ځوابونه وایي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>بیا ښوونکی د نوي لوست سرلیک د البقرة سورت ۷۱ آیت په تخته لیکي او د لوست لومړۍ مرحله په مناسب آواز سره لولي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي.بیا دغه لوست په څو زده کوونکو لولي او نور ورته غوږ نیسي او ښوونکی یې لفظي او تجویدي غلطۍ اصلاح کوي.بیا د لوست دویم او دریم پړاو لولي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي او بیا د لوست کلمې ورباندې په تخته لیکي. | زده کوونکي یې ورپسې تکراروي.<br><br>زده کوونکي غوږ نیسي. |
| ۱۰ دقیقې | او په پای کې د لوست ارزونه کوي مثلاً:<br>**ارزونه:**<br>۱. څوک د (فذبحوها) کلمه په تختې لیکلای شي؟<br>۲. څوک د لوست دریمه مرحله د تجوید په مراعاتولو سره تلاوت کولای شي؟ | زده کوونکي ځوابونه وایي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>له زده کوونکو څخه غواړي څو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او پنځه ځله یې ولولي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**لوست: اتلسم**

## عنوان: د البقرة سورت ۷۲ آیت تلاوت

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې**

**موخې: زده کوونکي باید:**

۱. د لوست له آیت سره أشنا شي.
۲. د لوست آیت په سمه توګه تلاوت کړی شي.
۳. د لوست له آیت سره علاقه ونښيي.

**اړینه پوهه**

د آیت ژباړه: او (یاد کړئ) هغه وخت چې مړکړ ستاسو (پلرونو) یوسړی، نو په هغه مقتول کې په جګړه شــوی او الله ﷻ ښکاره کوونکی دی د هغه شي چې تاسو پټاوه (قتل).

| وخت | دښوونکي کړني | د زده کوونکو کړني |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د حال له پوښتنې، ټولګي تنظیمولو، حاضرۍ اخستلو ښخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي مثلاً:<br>۱. څوک کولای شي د تیر لوست لومړی پړاو ولولي؟<br>۲. څوک کولای شي ﴿ فَذَبَحُوهَا ﴾ کلمه پر تخته ولیکي؟ | زده کوونکي ځوابونه وايي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>وروسته د نوي لوست سرلیک د البقرة سورت ۷۲ آیت پــه تختــه لیکــي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي څو لوست د ځانونو سره په پټه خوله ووايي.<br>وروسته ښوونکی د لوست درې واړه مرحلې ورته په مناسب غــږ پیلــوي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي.<br>بیا له څو زده کوونکو ښخه غواړي چې لوست خپلو ټولګیوالو ته تکرار کــړي او ښوونکی یې غلطۍ اصلاح کوي.<br>بیا له دوه زده کوونکو ښخه غواړي څو د لوست دوه دوه کلمې په تخته ولیکي په پای کې د لوست وروستنی جدول په تخته لیکي او په زده کوونکو یې مشق کوي. | زده کوونکي یــې ورپســـې تکرارروي.<br><br>زده کوونکي غوږ نیسي. |
| ۱۰ دقیقې | بیا خپل زده کوونکي ارزوي:<br>**ارزونه:**<br>۱. د لوست لومړۍ مرحله څوک ویلی شي؟<br>۲. څوک کولای شي ﴿ قَتَلْتُم ﴾ کلمه پرتخته ولیکي؟<br>۳. د لوست دویمه مرحله څوک لوستلی شي؟<br>٤. څوک کولای شي د لوست دریمه مرحله د تجوید په رعآیتولو تلاوت کړي؟<br>٥. څوک ﴿ فَادَّارَأْتُم ﴾ کلمه درې ځله په ښه توګه تلفظ کولای شي؟ | زده کــــوونکي ځوابونه وايي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي څو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**لوست: نولسم**

## عنوان: د البقرة سورت ۷۳ آیت تلاوت

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست له آیت سره روږدي شي.
- د لوست آیت په ښه توګه تلاوت کړي.
- د لوست له آیت سره لیوالتیا وښیي.

**اړینه پوهه**

د آیت ژباړه: نو وویل موږ ووهئ دا مړی په یوې بوټۍ د غوا (بیا ژوندی شو هغه وژل شوی) همداسې (لکه چې عامیل يې ژوندی کړ) ژوندي کوي الله مړي (په قیامت کې) او درښیي تاسې ته آیتونه (د قدرت) لپاره ددې چې تاسې غور وکړئ.

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له روغبړ، ټولګي تنظیمولو، حاضرۍ کتلو او کورنۍ دندې ملاحظه کولو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي مثلاً:<br>- څو ک د لوست دوهم پړاو لوستلی شي؟<br>- څو ک کولای شي ﴿ قَتَلْتُمْ ﴾ کلمه پر تخته ولیکي؟ | سریزې ته ځانونه چمتو کوي.<br>ځوابونه وايي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>وروسته د نوي لوست سرلیک (د البقرة سورت ۷۳ آیت) په تخته لیکي د زده کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته را اړوي او ورته وايي څو لوست په پټه خوله یو یو ځل ولولي.<br>بیا د لوست درې واړه مرحلې په نوبت سره ورته وايي او دوی یې ورپسې تکراروي.<br>بیا د لوست هره مرحله په دوه دوه زده کوونکو وايي او ښوونکی يې غلطۍ اصلاح کوي.<br>بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي د تختې مخې ته راشي او د لوست یوه یوه کلمه پرتخته ولیکي. | لوست په پټه خوله وايي.<br>زده کوونکي غوږ نیسي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. څو ک کولای شي د لوست لومړۍ مرحله ولولي؟<br>۲. څو ک ﴿ بِبَعْضِهَا ﴾ کلمه پر تخته لیکي؟<br>۳. څو ک کولای شي ﴿ فَقُلْنَا اضْرِبُوهُ ﴾ کلمه درې ځله سمه تلفظ کړي؟ | زده کوونکي ځوابونه وايي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي څو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**لوست: شلم**

## عنوان: د البقرة سورت ۷۴ آیت تلاوت

**صفحه:**

**وخت: یوه درسي کړۍ (۴۵ دقیقې)**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست د آیت کلمې وپیژني.
- د لوست آیت په سمه توګه تلاوت کړي.
- د لوست له آیت سره لیوالتیا ونبیي.

**اړینه پوهه**

د ۷۴ آیت د لومړي جزء ژباړه: بیا سخت شول زړونه ستاسې پس له دغه (ژوندي کولو د مړي) نو دغه زړونه په مثل د تیږې دي (په سختوالي کې) بلکې ډېر زیات دي په سختوالي کې. او بیشکه چې له ځینو تیږو څخه خامخوا هغه دي خوټیږي (بهیږي) له هغو څخه لویې لویې ویالې.

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له حال احوال معلومولو، ټولګی تنظیمولو، کورنۍ دندې کتلو او حاضرې اخستلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي مثلاً:<br>- څوک کولای شي د لوست لومړۍ مرحله د کتاب له مخې ولولي؟ | زده کوونکي په سریزه کې برخه أخلي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>بیا له زده کوونکو څخه د نوي لوست سرلیک معلوموي او په تخته یې لیکي او د زده کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته راګرځوي.<br>بیا ښوونکی لوست ورته په مناسب غږ د تجوید په مراعاتولو سره پیلوي او دوی یې ورپسې تکراروي. بیا ټولګی په دریو برخو ویشي او هرې برخې ته دنده ورکوي څو د لوست یوه یوه مرحله ولولي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست یوه یوه کلمه په تخته ولیکي او نور زده کوونکي یې ولولي او غلطۍ یې راوباسي.<br>بیا د لوست سختې کلمې ورباندې تلفظ کوي. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک د لوست اوله مرحله لوستلی شي؟<br>۲. څوک کولای شي﴿ قُلُوبُكُم ﴾ کلمه په تخته ولیکي؟<br>۳. د لوست دوهمه مرحله څوک لوستلی شي؟<br>٤. څوک د آیت لومړی جزء په تجوید لوستلی شي؟<br>٥. څوک ﴿ كَالْحِجَارَةِ ﴾ کلمه سمه تلفظ کولای شي؟ | زده کوونکي ځوابونه وایي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څو د لوست کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**لوست: یوویشتم**

## سرلیک: د البقرة سورت ۷۴ آیت دویمه برخه

**صفحه:**

**وخت: یو درسی ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست د آیت کلمې وپېژني.
- د لوست آیت په سمه توګه تلاوت کړي.
- د لوست له آیت سره لیوالتیا وښیي.

**اړینه پوهه**

د آیت د دویم جزء ژباړه: او په تحقیق ځنې له دې تیږو څخه حامخا هغه دي چې چوي نو راوځي له هغو څخه اوبه او بیشکه ځنې له دې تیږو څخه خامخا هغه دي چې رالغړي (د غره له سره) له ویرې د الله ﷻ او نه دی الله ﷻ بې خبر له هغو کارونو چې تاسې یې کوئ (ای یهودانو!)

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي کارونو وروسته د نوي لوست د سرلیک په هکله له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي او په تخته یې لیکي. | زده کوونکي په مقدماتي کارونو کې برخه اخلي |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>لومړی زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او ورڅخه غواړي څو لوست په پټه خوله له ځانونو سره ولولي.<br>وروسته لوست ورته پیلوي او هره کلمه د تجوید په مراعاتولو سره ورته تلفظ کوي او دوی یې ورپسې تکراروي. بیا ټولګی په دریو برخو ویشي څو یوه یوه مرحله په خپلو کې تکرار کړي.<br>بیا له هرې برخې څخه غواړي چې خپله برخه نورو ټولګیوالو ته په لوړ غږ ولولي ښوونکی یې غلطۍ اصلاح کوي او تشویقوي یې. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک د لوست لومړۍ مرحله لوستلی شي؟<br>۲. څوک کولای شي ﴿ يَهۡبِطُ ﴾ کلمه په تخته ولیکي؟<br>۳. څوک د لوست دویمه او دریمه مرحله د تجوید په مراعاتولو سره لوستلی شي؟<br>٤. څوک کولای شي ﴿ يَشَّقَّقُ ﴾ کلمه سمه تلفظ کړي؟ | زده کوونکي ځوابونه وایي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>بیا له زده کوونکو څخه غواړي څو د لوست کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او لوست په کور کې تکرار کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**لوست**: دوه ويشتم

## سرليک: د البقرة سورت ۷۵ آيت

**صفحه:**

**وخت:** (۴۵ دقيقې)

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست کلمې هجا کړی شي.
- د لوست آيت په سمه توګه ولوستلی شي.
- د لوست له آيت سره د زړه له کومې مينه ولري.

**اړينه پوهه**

د آيت ژباړه: آيا نو طمع کوئ تاسې (اى مسلمانانو) چې ايمان به راوړي دوی (په وينا ستاسو) او بيشکه وه يوه ډله (د يخوانيو) له دوی چې اوريده به يې د الله جَلَّ جَلَالُهُ کلام بيا يې اړوله هغه خبره وروسته له هغه چې پوه به شول په هغې حال دا چې دوی پوهيدل (په دې تحريف او افتراء)

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سريزه ۵ دقيقې | ښاغلی ښوونکی د روغبړ، ټولګي تنظيمولو، حاضرۍ اخستلو او کورنۍ د ندې کتلو څخه وروسته د تير لوست ارزونه په څو پوښتنو سره کوي مثلاً:<br>– څوک کولای شي د لوست لومړۍ مرحله سمه ولولي؟<br>– څوک کولای شي د لوست آيت په ښه توګه تلاوت کړي؟ | مقدماتي چارې سرته رسوي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست بهير:**<br>بيا د نوي لوست سرليک په تخته ليکي (د البقرة سورت ۷۵ آيت) او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي لومړی له زده کوونکو څخه غواړي څو لوست له خپلو ځانونو سره ولولي. بيا ښوونکی ورته لوست په مناسب آواز پيلوي او زده کوونکي يې ورپسې تکراروي.<br>ورپسې د لوست د کلمو جدول د تختې پرمخ ليکي او په زده کوونکو يې تمرينوي.<br>بيا له څو زده کوونکو څخه غواړي څو د ټولګي مخې ته راشي او يوه يوه کلمه د تختې له مخې ووايي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک کولای شي د لوست لومړۍ مرحله ولولي؟<br>۲. څوک ﴿يَسۡمَعُونَ﴾ کلمه پرتخته ليکلای شي؟<br>۳. څوک کولای شي د لوست آيت د تجويد په مراعاتولو ووايي؟<br>٤. څوک ﴿أَفَتَطۡمَعُونَ﴾ کلمه سمه تلفظ کولای شي؟ | زده کوونکي ځوابونه وايي. |
| ۵ دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي څو لوست په خپلو کتابچو کې وليکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۲۳

## سرليک: د البقرة سورت ۷۶ آيت

**صفحه:**

**وخت:** يو درسي ساعت

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست د آيت کلمې هجا کړی شي.
- د لوست آيت په ښه توګه ولوستلی شي.
- د لوست د آيت سره ليوالتيا وښيي.

**اړينه پوهه**

د آيت ژباړه: او کله چې ملاقات وکړي (يهودان) له مؤمنانو سره وايي چې موږ ايمان راوړی دی او کله چې يوازې شي ځينې ددوی له ځينو نورو سره نو وايي دوی آيا خبروئ تاسې (اې يهودانو) مؤمنان په هغه شي چې پرانستلی دی الله ﷻ په تاسې (په تورات کې) ددې لپاره چې جګړه وکړي له تاسې سره مؤمنان په هغه سره ستاسو د پرور دګار په نزد آيا نو نه پوهيږئ (چې دښمن ته حجت ورښيئ).

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سريزه ۵ دقيقې | ښاغلی ښوونکی له روغبړ، ټولګي تنظيمولو، حاضرۍ اخستلو او کورنۍ دندې کتلو وروسته د تير لوست ارزونه کوي د مثال په توګه:<br>- څوک کولای شي د تير لوست آيت له مخې ولولي؟<br>- څوک د ﴿ يُحَرِّفُونَهُ ﴾ کلمه پرتخته ليکلی شي؟ | مقدماتي چارې سرته رسوي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست بهير:**<br>ښوونکی له مقدماتي چارو وروسته د نوي لوست سرليک (البقرة سورت ۷۶ آيت) په تخته ليکي او د زده کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته رااړوي.<br>لومړی له دوی څخه غواړي خو لوست له ځانونو سره مطالعه کړي، بيا ښوونکی ورته لوست مرحله په مرحله لولي او دوی يې ورپسې تکراروي.<br>بيا يو يو تن ته امر کوي څو لوست په لوړ آواز ووايي او نور زده کوونکي ورته غوږ نيسي.<br>بيا زده کوونکي په څو ډلو ويشي او دنده ورکوي څو د لوست کلمې ولولي، هجاء يې کړي او بيا له هرې ډلې څخه يو يو تن جګوي څو د لوست يوه يوه کلمه په تخته وليکي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک د لوست لومړۍ مرحله د کتاب له مخې لوستلی شي؟<br>۲. څوک کولای شي ﴿ أَفَلاَ تَعْقِلُونَ ﴾ کلمه پر تخته وليکي؟<br>۳. څوک کولای شي د لوست پاتې برخه د تجويد په رعآيتولو ولولي؟<br>٤. څوک کولای شي ﴿ بِمَا فَتَحَ اللّٰهُ ﴾ کلمه په سمه توګه تلفظ کړي؟ | زده کوونکي ځوابونه وايي. |
| ۵ دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي څو لوست په سمه توګه په کورونو کې زده کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۲۴

## سرلیک: د البقرة سورت ۷۷–۷۸ آیتونه

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست کلمې د حرکاتو توګه ولوستلی شي.
- د لوست آیت په سمه توګه تلاوت کړای شي.
- د لوست د آیت له تلاوت څخه احساس د خوښۍ وکړي.

**اړینه پوهه**

د ۷۷–۷۸ آیتونو ژباړه: آیا نه پوهیږي دغه (یهودان) چې بیشکه الله ﷻ عالم دی په هغه څه (کفر او نفاق) چې پټوي یې دوی او په هغه څه (ایمان) چې ښکاره کوي یې. او ځنې له دغو (یهودانو) څخه أمیان دي چې نه پوهیږي په کتاب (تورات) باندې مګر خو پوهیږي د خپلو نفسونو په هیلو او نه دي دوی مګر خو بې دلیله ګمان کوي.

**د تدریس طریقه:** مطالعه، پوښتنې او ځوابونه، انفرادي.

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له روغبړ، ټولګی تنظیمولو، حاضرۍ اخستلو او کورنۍ دندې کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي د بیلګې په توګه:<br>- څوک کولای شي دغه کلمې هجاء کړي ﴿أَتُحَدِّثُونَهُم﴾، ﴿لِيُحَآجُّوكُم﴾.<br>- څوک کولای شي د تیر لوست آیت په سمه توګه د تجوید په مراعاتولو تلاوت کړي؟ | مقدماتي چارې سرته رسوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>ښوونکی بیا د نوي لوست عنوان (البقرة سورت ۷۷–۷۸ آیتونه) پر تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي.او لوست په مناسب غږ سره پیلوي او زده کوونکي ورته غوږ نیسي، وروسته له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي څو د لوست آیت تلاوت کړي.<br>بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست ستونزمنې کلمې هجاء کړی شي.<br>بیا زده کوونکو ته موقع ورکوي څو یو د بل څخه د لوست په هکله پوښتنې وکړي او ښوونکی یې غلطۍ ور اصلاح کوي. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | بالآخره له هر زده کوونکي څخه غواړي څو آيت په رواني توګه تلاوت کړي.بيا څو زده کوونکي تختې ته راغواړي او يوه يوه کلمه ورباندې ليکي او په خپله يې غلطۍ اصلاح کوي. | |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک د لوست دغه کلمې: ﴿يَعْلَمُونَ، يَظُنُّونَ، أَمَانِيَّ﴾ هجاء کولای شي؟<br>۲. څوک کولای شي ﴿لاَ يَعْلَمُونَ﴾ کلمه په تخته وليکي؟<br>۳. څوک دا آيتونه د تجويد په مراعاتولو سره تلاوت کولای شي؟<br>۴. څوک ﴿أُمِّيُّونَ﴾ کلمه سمه تلفظ کولای شي؟ | زده کوونکي ځوابونه وايي. |
| ۵ دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي څو لوست په خپلو کتابچو کې وليکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۲۵

## سرلیک: د البقرة سورت ۷۹ آیت

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.
- د لوست آیت په رواني توګه تلاوت کړی شي.
- د لوست د آیت له لوستلو څخه خوند واخلي.

**اړینه پوهه**

د آیت ژباړه: نو عذاب (هلاک او خرابي ده) د هغو کسانو لپاره چې کتاب له (خپله ځانه) لیکي په خپلو لاسونو بیا وایي دغه (محرفین خلکوته) چې دا لیکل شوی د الله ﷻ له نزده دی، ددې لپاره چې واخلي په دغه کتاب (اړولي) لیک لږ قیمت، نو (عذاب، هلاک او) خرابي ده دوی ته دوی ته له سببه د هغه شي چې لیکلی دی لاسونو د دوی او بیا خرابي ده دوی ته د هغه کار له سببه چې کوي یې (چې رشوت اخستل دي).

| وخت | ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له روغبړ، ټولګی تنظیمولو، حاضرۍ اخستلو او کورنۍ دندې کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو له ترسره کولو وروسته د نوي لوست سرلیک (البقرة سورت ۷۹ آیت) په تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي. اول ورته وایي چې لوست د ځانونو سره په پټه خوله مطالعه کړي. بیا لوست ورته په مناسب غږ سره پیلوي او دوی ته وایي چې غوږ ونیسي.<br>بیا لوست ټوټه ټوټه په څو زده کوونکو تکراروي او دی یې غلطۍ ور اصلاح کوي او تشویقوي یې. بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست لومړی په حرکاتو او بیا په رواني توګه ولولي.<br>بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي څو د ټولګي مخې ته راشي او د لوست یوه یوه کلمه په تخته ولیکي او بیا یې هجاء کړي. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک د لوست لاندې کلمې په حرکاتو لوستلای شي: ﴿يَكْتُبُونَ، لِيَشْتَرُواْ، ثَمَنًا، يَكْسِبُونَ﴾.<br>۲. څوک کولای شي د لوست آیت د تجوید په مراعاتولو تلاوت کړي؟<br>۳. څوک د لوست څنې کلمې په تخته لیکلای شي لکه:﴿فَوَيْلٌ، كَتَبَتْ، عِندِ﴾ | زده کوونکي ځوابونه وايي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته امر کوي څو د لوست آیت په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۲۶

## سرلیک: د البقرة سورت ۸۰ آیت

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د لوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.
- د لوست د آیت کلمې هجاء کړی شي.
- د لوست آیت په رواني توګه سم تلاوت کړی شي.
- د لوست له آیت څخه د خوښۍ احساس وکړي.

**اړینه پوهه**

د آیت ژباړه: او وايي دوی (يهودان) هيڅيرې به ونه رسيږي موږ ته اور د دوزخ مګر څو ورځې شميرل شوې (لږې) ووايه ته (اې محمده! دوی ته) آیا تاسو له الله ﷻ څخه ژمنه اخستې ده (چې عذاب به نه درکوي) نو الله لـه سـره مخالفت نه کوي له خپلې ژمنې څخه یا وآیاست (او جوړوئ) په الله ﷻ هغه (دروغ) چې نه پرې پـوهيږئ (بلکـې داسې نده چې تاسې وايئ).

| وخت | ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سريزه ۵ دقيقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو له ترسره کولو وروسته د نوي لوست سرليک په هکله له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي او بیا يې په تخته ليکي(البقرة سورت ۸۰ آيت)وروسته له زده کوونکو څخه غواړي څو لوست په پټه خوله له ځانونو سـره ولولي. | مقدماتي چـارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست بهیر:**<br>بيا ښوونکی لوست د تجويد په مراعاتولو سره ورته پيلوي اول لـه دوی څخـه غواړي چې قرائت ته غوږ ونيسي او دوهم ځل يې ورسره تکرار کړي.<br>بيا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست ټوټه ټوټه ولولي او ښوونکی يـې غلطۍ اصلاح کوي. بيا زده کوونکي په دريو ډلو ويشي څو د لوست هره مرحله يوه يوه ډله ولولي او بيا يې استازي نورو زده کوونکو ته تلاوت کړي.<br>بيا له څو زده کوونکو څخه غواړي څو لوست په حرکاتو او رواني توګه ولولي او تجويد پکې مراعات کړي. | د لوست په بهيـر کې فعالـه ونـډه اخلي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک کولای شي لوست په حرکاتو ولولي؟<br>۲. څوک کولای شي لوست په رواني توګه تلاوت کړي؟<br>۳. څوک کولای شي دغه کلمې په سمه توګه تلفظ کـړي؟ ﴿النَّار، أَيَّامًا، مَّعْدُودَةً، أَتَّخَذْتُم﴾<br>٤. څوک د لوست دغه کلمې(النَّار، أَتَّخَذْتُم) په تخته ليکلای شي؟ | زده کــــوونکي ځوابونه وايي. |
| ۵ دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>له زده کوونکو څخه غواړي د خپل ملا امام په مرسته لوست ښه سم تلاوت کړی شي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۲۷

## سرلیک: د البقرة سورت ۸۱ آیت

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.
- د لوست د آیت ځنې کلمې هجاء او اعراب کړی شي.
- د لوست آیت د تجوید مطابق تلاوت کړی شي.
- د لوست د آیت له لوستلو د خوښۍ احساس وکړي.

**اړینه پوهه**

د آیت ژباړه: بلکې (رسیږي تاسې ته دایمي اور) هرچا چې کسب کړه بدي او چاپیره شوه پرده ګناه دده (چې تر مرګه پورې کفر دی) نو همدغه کسان (د دوزخ) د اور خاوندان دي دوی به په هغه اور کې همیشه وي.

| وخت | ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو له ترسره کولو وروسته د نوي لوست سرلیک (د البقرة سورت ۸۱ آیت) په تخته لیکي او د زده کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته راواړوي. | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>ښوونکی له دوی څخه غواړي چې د لوست آیت له ځانونو سره په حرکاتو او بیا په رواني توګه ولولي.<br>بیا ښوونکی د لوست آیت په ښه خواږه آواز د تجوید په مراعاتولو سره تلاوت کوي او دوی ورته غوږ نیسي.<br>دوهم ځل یې ورته وایي او دوی یې ورپسې تکراروي. بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي څو لوست ولولي . هم په حرکاتو او هم په راوني توګه.<br>بیا ښوونکی له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او د لوست ځنې کلمې په تخته ولیکي او نور زده کوونکي یې ولولي او غلطۍ یې راوباسي. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | وروسته لوست ارزوي د بیلګې په توګه:<br>**ارزونه:**<br>۱. څوک د لوست آیت په حرکاتو لوستلای شي؟<br>۲. څوک د لوست آیت په رواني توګه لوستلی شي؟<br>۳. څوک دغه کلمو ته ﴿وَأَحَاطَتْ، خَطِيئَتُهُ، النَّارِ، خَالِدُونَ﴾ اعراب ورکولی شي؟<br>٤. څوک د لوست دغه کلمې (خَطِيئَتُهُ، خَالِدُونَ)په تخته لیکلای شي؟ | زده کوونکي ځوابونه وایي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>له زده کوونکو څخه غواړي څو د لوست آیت د جدول په شکل په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۲۸

## سرلیک: د البقرة سورت ۸۲ آیت

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید

- د لوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.
- د لوست د آیت ځنې کلمې اعراب کړی شي.
- د لوست آیت په رواني توګه د تجوید په مراعاتولو سره تلاوت کړي.
- د لوست له آیت څخه احساس د تبرک وکړی.

**اړینه پوهه**

د آیت ژباړه: او هغه کسان چې مؤمنان دي او نیک عملونه کوي همدغه کسان د جنت خاوندان دي دوی به په هغه جنت کې تل وي.

| وخت | ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو له ترسره کولو وروسته د نوي لوست سرلیک په هکله له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي او بیا یې په تخته لیکي (البقرة سورت ۸۲ آیت) | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>وروسته د زده کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته راړوي او لومړي لوست ورته په حرکاتو لولي د کلمو اعراب ورته ښیي. وروسته په رواني توګــه د تجویــد پــه مراعاتولو سره ورته تلاوت کوي او دوی غوږ ورته نیسي.<br>بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په حرکاتو او رواني توګه ولولي او ځنې کلمې هجاء او اعراب کړي.<br>بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې ځنې کلمې په تخته ولیکي او ځنې نور یې ولولي او ښوونکی یې غلطۍ ور اصلاح کوي. بیا د ټولګي ارزونه کوي. | د لوست په بهیــر کې فعالــه ونــډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک د لوست آیت په حرکاتو لوستلای شي؟<br>۲. څوک د لوست آیت په رواني توګه لوستلای شي؟<br>۳. څوک د لوست دغه کلمې ﴿عَمِلُوا، الصَّالِحَاتِ، أُولَئِكَ﴾ په تخته لیکلای شي؟<br>٤. څوک پاسنیو کلمو ته اعراب ورکولی شي؟ | زده کــــوونکي ځوابونه وایي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>له زده کوونکو څخه غواړي څو د لوست آیت په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۲۹

## سرلیک: د البقرة سورت ۸۳ آیت لومړی برخه

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د لوست د آیت کلمې اعراب کړی شي.
- د لوست آیت په حرکاتو و لوستلای شي.
- د لوست آیت په رواني توګه ولوستلی شي.
- د لوست د آیت په تلاوت يې روح تازه شي.

**اړینه پوهه**

د آیت ژباړه: او (یاد کړه ای محمده!) هغه وخت چې واخسته موږ محکمه ژمنه له بني اسرائیلو څخه او وویل موږ دوی ته چې عبادت مه کوئ: مګر یوازې د الله ﷻ او (نیکي کوئ) له مور او پلار سره نیکي او د خپلولۍ له خاوندانو سره او له یتیمانو سره او له مسکینانو سره.

| وخت | ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو له ترسره کولو وروسته د نوي لوست سرلیک(البقرة سورت د ۸۳ آیت لومړی برخه) په تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي. | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>لومړی له دوی څخه غواړي چې لوست له ځانونو سره مطالعه کړي او بیا يې ښوونکي ورته قرائت کوي او دوی غوږ ورته نیسي. وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په حرکاتو او رواني توګه ولولي او ځنې کلمات اعراب هم کړي.<br>بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې په دریو ډلو وویشل شي د لوست هره مرحله یوه یوه ډله ولولي او بیا له نورو ډلو څخه پکې پوښتنې وکړي ښوونکی غلطۍ اصلاح کوي او تشویقوي يې هم.<br>بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي څو د تختې مخې ته راشي او د لوست ځنې کلمې پرتخته د املا په توګه ولیکي. بیا ارزونه کیږي. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک کولای شي د لوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي؟<br>۲. څوک کولای شي د لوست آیت په رواني توګه ولوستلي شي؟<br>۳. څوک د لوست آیت د تجوید په مراعاتولو سره لوستلی شي؟<br>٤. څوک ﴿وَعَمِلُواْ الصَّالِحَاتِ﴾ کلمه په سمه توګه تلفظ کولای شي؟ | زده کوونکي ځوابونه وايي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>دنده ورکول کیږي څو د لوست آیت ښه زده او په کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۳۰

## سرلیک: د البقرة سورت ۸۳ آیت دویمه برخه

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** شاګردان باید:

- د لوست آیت په حرکاتو ولوستلای شي.
- د لوست د آیت مهمې کلمې اعراب کړی شي.
- د لوست آیت په رواني توګه تلاوت کړی شي.
- د لوست د آیت له لوستلو د خوښۍ احساس وکړي.

**اړینه پوهه**

د پاتې آیت ژباړه: او ووایئ خلکو ته (ښې خبرې) ښایسته خبرې او لمونځ قایم کړئ سم (سره له ټولو مقرراتو) او زکوة ورکوئ، بیا وګرځیدئ تاسې (له دې ژمنې) خو (ونه ګرځیدل) لږ له تاسې څخه حال داچې همدا تاسې مخ ګرځوونکي یئ (له الهي احکامونه).

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو له ترسره کولو وروسته د نوي لوست سرلیک ټاکلو په نیت له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي او بیا د لوست سرلیک (البقرة سورت د ۸۳ آیت دویمه برخه) په تخته لیکي او زده کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته را اړوي. | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>لومړی له زده کوونکو څخه غواړي څو لوست له ځانونو سره مطالعه کړي بیا لوست په مناسب آواز سره د تجوید په مراعاتولو سره ورته پیلوي او دوی غوږ ورته نیسي. بیا یې په څو تنو لولي او غلطي یې اصلاح کوي.<br>بیا زده کوونکو ته وخت ورکوي څو یو د بل څخه د آیت په هکله پوښتنې وکړي او ځنې کلمې یې اعراب کړي.<br>بیا څو زده کوونکي تختې ته راغواړي او ځنې کلمې پرې لیکي او بالآخره د ټولګي ارزونه کوي: | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. د لوست آیت څوک په حرکاتو لوستلای شي؟<br>۲. د لوست آیت څوک د تجوید په مراعاتولو په رواني توګه لوستلی شي؟<br>۳. د لوست په آیت کې د ﴿لِلنَّاسِ﴾ کلمه څوک سمه تلفظ کولای شي؟<br>٤. د ﴿وَآتُواْ الزَّكَاةَ﴾ کلمه څوک په تخته لیکلی شي؟ | زده کوونکي ځوابونه وايي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته امر کوي څو لوست په ښه توګه زده او په کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۳۱

## سرلیک: د البقرة سورت ۸۴ آیت

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت په حرکاتو ولوستلای شي.
- د لوست آیت په رواني توګه ولوستلای شي.
- د لوست د آیت په لوستلو سره احساس د خوشحالۍ وکړي.

**اړینه پوهه:**

د آیت ژباړه: او (یاد کړئ اې بنی اسرائیلو) هغه وخت چې واخسته موږ محکمه ژمنه له (پلرونو) ستاسې (په تورات کې) چې مه تویوئ وینې ستاسې او مه باسئ ځانونه خپل (یوبل په ظلم سره) له کورونو ستاسې بیا ژمنه وکړه (پلرونو) ستاسې حال داچې تاسې شاهدان یئ.

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو ځخه وروسته د انګیزې پیدا کولو په اراده د نوي لوست سرلیک ټاکلو لپاره د زده کوونکو څخه پوښتنه کوي او بیا سرلیک (د البقرة سورت ۸۴ آیت) په تخته لیکي. | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>لومړی له زده کوونکو ځخه غواړي چې لوست په ټیټه خوله له ځانونو سره ولولي او بیا ښوونکی لوست د تجوید په مراعاتولو سره پیلوي او زده کوونکي ورته غوږ نیسي بیا دوهم ځل یې زده کوونکي همورپسې تکراروي.<br>بیا له ځو زده کوونکو ځخه غواړي چې لوست په مناسب آواز ولولي او نور زده کوونکي ورته غوږ نیسي ښوونکی یې غلطۍ اصلاح کوي.<br>بیا د ټولګي له ضعیفو زده کوونکو ځخه غواړي چې لوست ولولي او ښوونکی یې غلطۍ اصلاح کوي او دوی تشویقوي.<br>بیا ځو زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي او د لوست ځنې کلمې پرې اعرابوي او ځنې پرې لیکي. په پای کې د ټولګي ارزونه کیږي. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک د لوست آیت په حرکاتو او رواني توګه لوستلای شي؟<br>۲. څوک د لوست آیت د تجوید په مراعاتولو سره لوستلی شي؟<br>۳. څوک ﴿لاَ تَسْفِكُونَ﴾ کلمه سمه تلفظ کولای شي؟ | زده کوونکي ځوابونه وایي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دنده ورکوي څو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او ښه یې تکرار کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۳۲

## سرلیک: د القبرة سورت ۸۵ آیت لومړی برخه

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت په حرکاتو ولوستلای شي.
- د لوست آیت په روانی توګه ولوستلی شي.
- د لوست د آیت په تلاوت يې زړه او روح تازه شي.

**اړینه پوهه**

د ۸۵ آیت لومړی برخې ژباړه: پس (له دې ژمنې) تاسې هغه کسان یئ چې وژنئ خپل ځانونه (یو بل سره وژنئ غریبان اقربا خپل) او باسئ تاسې یوه ډله خپله (چې مغلوبه شي) له کورونو ددوی څخه، مرسته کوئ یو له بل سره پردوی باندې په ګناه او ظلم.

**تفسیر**

په مدینه منوره کې د یهودانو دوې فرقې وې بني قریظه او بني نضیر او دوی یو له بل سره جنګیدل او د مشرکانو هم دوه ډلې وې اوس او خزرج دوی هم له یو او بل سره په جګړه وو، بني قریظه د اوس سره ملګري وو او بني نضیر د خزرج سره او یو د بل سره به یې مرستې کولې نو کله به چې کومه ډله مغلوبه شوه هغه به یې د وطنه شـړله او کورونه به یې لوټول او د بندي لپاره به یې پیسې ټولولې او هغه به یې خلاصوه نور تفصیل ورروسته راځي.

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو له ترسره کولو وروسته د نوي لوست سرلیک د (البقرة سورت د ۸۵ آیت لومړی برخه) په تخته لیکي او زده کوونکي خپلـو کتابونو ته متوجه کوي. | مقـدماتي چـارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست له ځانونو سره ولولي او وروسته لوست ورته پـه مناسب غږ پیلوي او د تجوید موافق يې ورته تلاوت کوي. بیا له څو تنو زده کوونکو څخـه غواړي څو د تختې مخې ته راشي او د لوست ستونزمنې کلمې اعراب او هجاء کړي.<br>وروسته ښوونکي د لوست آیت ټوټه ټوټه په زده کوونکو لولي او د تجوید موافق يـې پرې تلفظ کوي، په پای کې د لوست ارزونه کوي. | د لوست په بهیـر کې فعالـه ونـډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک د لوست آیت په حرکاتو او روانی توګه لوستلی شي؟<br>۲. څوک د لوست آیت د تجوید په مراعاتولو سره تلاوت کولای شي؟<br>۳. څوک کولای شي د ﴿منكُمْ﴾ کلمه په سمه توګه تلفظ کړي؟<br>٤. څوک د ﴿ثُمَّ﴾ کلمه په تخته لیکلای شي؟ | زده کـــــوونکي ځوابونه وایي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څو لوست ښه ضبط او په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۳۳

## سرلیک: البقرة سورت د ۸۵ آیت دویمه برخه

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.
- د لوست آیت په روانۍ ولوستلی شي.
- د لوست د آیت مهمې کلمې اعراب کړی شي.
- د لوست د آیت له تلاوت څخه یې روح خوشحاله شي.

**اړینه پوهه**

د ۸۵ آیت د دویمې برخې ژباړه: او که راشي دوی تاته بندیان نو فدیه ورکوئ تاسې د دوی په ځای حال داچې حرام کړی شوی دی پرتاسې ایستل د هغو آیا پس (منئ او) ایمان راوړئ تاسې پرځینو (احکامو) د کتاب (چې فدیه ده) او کافران کیږئ په ځینو نورو احکامو د کتاب چې بی ګناه وژنئ، په ګناه سره مرسته کوئ ددوی مغلوبان لــه وطنه شړئ.

**تفسیر**

یعنې که د بل قوم په لاس کې بندي شئ نو د هغو په خلاصولو کې په ډېره میړانه توګه سره ولاړیږئ او ملاوې تړئ خــو په خپله د هغو د وینې د څښلو او مرۍ غوڅولو لپاره شنه ناست یئ نو که غواړئ چې د الله ﷻ په احکامو باندې عمــل اوتګ وکړئ ښایي چې په دواړو ځایو کې له هغو سره معاونت او مرحمت وکړئ او د هغو له اعانت او حمآیت څخــه سرونه غړوئ!.

| وخت | ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو له ترسره کولو وروســته د نــوي لوســت د سرلیک په هکله پوښتنه کوي او په تخته یې لیکي: (البقرة سورت د ۸۵ آیــت دویمه برخه). | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>وروسته زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او ورڅخه غواړي څو لوست لــه | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | ځانونو سره تکرار کړي بيا ښوونکی د لوست آيت د تجويد په مراعاتولو سره ورته په ښه مناسب آواز تلاوت کوي او دوی ورته غوږ نيسي.<br>د دوهم ځل لپاره يې دوی هم ورسره تکراروي. بيا له ځو زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست آيت تلاوت کړي. بيا زده کوونکو ته وخت ورکوي ځو د آيت په هکله يو د بل څخه پوښتنې وکړي او ځنې کلمې اعراب او ځنې هجاء کړي او بيا يې په تخته وليکي. او په پای کې لوست ارزوي. | |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک د لوست آيت په حرکاتو لوستلای شي؟<br>۲. څوک يې په رواني توګه لوستلای شي؟<br>۳. څوک ﴿تُفَادُوهُمْ﴾ کلمه سمه تلفظ کولای شي؟<br>٤. څوک ﴿عَلَيْكُمْ﴾ کلمه په تخته ليکلای شي؟ | زده کوونکي ځوابونه وايي. |
| ۵ دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>دنده ورکول کېږي څو د لوست آيت ښه تکرار او په خپلو کتابچو کې وليکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**لوست: ۳۴**

## سرلیک: البقرة سورت د ۸۵ آیت پاتې برخه

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت په حرکاتو او رواني توګه ولوستلی شي.
- د لوست د آیت ستونزمنې کلمې هجا او اعراب کړی شي.
- د لوست د آیت ستونزمنې کلمې تلفظ کړی شي.
- د لوست د آیت په تلاوت یې روح تازه شي.

**اړینه پوهه**

د ۸۵ آیت د پاتې برخې ژباړه: پس نده سزا د هغه چا چې کوي دا (کارونه) له تاسې څخه مګر خو رسوايي ده په ژوند د دنیا کې او په ورځ د قیامت کې ګرځول کیږي دوی ډېر سخت عذاب (د دوزخ اور) ته اونه دی الله غافل له هغه څه چې کوئ یې تاسې (اې یهودانو!)

**تفسیر**

تفسیر یعني داسې کوئ چې ځنې احکام منئ او له ځنو انکار کوئ نو ددې لپاره چې د ایمان تجزیه ممکنه نده نو ځکه د ځنو احکامو منکر هم مطلق کافر ګڼل کیږي نو په شریعت کې داسې کار هیڅ فایده نلري چې ځنې احکام پرځای کوي او ځنې پریږدي.

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو له انجامولو وروسته د نوي لوست سرلیک (البقرة سورت ۸۵ آیت پاتې برخه) په تخته لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې له ځانونو سره یې ولولي. | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>بیا یې ښوونکی ورته په مناسب غږ د تجوید په مراعاتولو لولي لومړی دوی ورته غوږ نیسي. په دویم ځل یې پسې تکراروي. بیا یې په څو زده کوونکو باندې لولي او نورو زده کوونکو ته دنده ورکوي څو غلطۍ یې اصلاح کړي.<br>وروسته زده کوونکو ته وخت ورکوي څو د لوست په هکله له ښوونکي څخه مختلفې پوښتنې وکړي او بیا په خپلو کې هم له یو اوبل څخه پوښتنې مطرح کړي. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. د لوست آیت څوک په حرکاتو او رواني توګه لوستلای شي؟<br>۲. د لوست د آیت ستونزمنې کلمې لکه ﴿خِزْيٌ، فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا، الْعَذَابِ﴾ څوک هجاء او اعرابولی شي؟<br>۳. څوک ﴿يُرَدُّونَ﴾ کلمه په سمه توګه تلفظ کولای شي؟ | زده کوونکي ځوابونه وايي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څو د لوست آیت په کورونو کې ښه ضبط او په کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۳۵

## سرلیک: البقرة سورت ۸۶ آیت

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د لوست آیت په حرکاتو او رواني توګه سم ولوستلی شي.
- د لوست د آیت ستونزمنې کلمې هجا او اعراب کړی شي.
- د لوست له آیت څخه یې زړونه خوشحاله شي.

**اړینه پوهه**

د آیت ژباړه: دا هغه کسان دي چې د دنیا ژوند یې اخستی دی په (بې انتها نعمتونو د) أخرت، سپک به نه کړی شي له دوی څخه (دنیوي او اخروي) عذاب او نه به له دوی سره مرسته وکړه شي (په دفع د عذاب کې).

**تفسیر**

یعنې د نیوي ګټه یې د آخرت په مقابل کې غوره کړه او هغه یې په دغه بدله کړه نو له کومو خلکو سره یې چې ژمنه کړې وه هغوی د دنیوي ګټې لپاره پای ته ورسوله او د الله د احکامو یې څه پروا ونه کړه نو د داسې کسانو حمآیت او سپارښتنه به د الله ﷻ په دربار کې څوک وکړئ شي؟

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو له ترسره کولو وروسته د نوي لوست سرلیک په تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او امر ورکوي څو لوست له ځانونو سره ولولي. | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>بیا یې ښوونکی ورته د تجوید په مراعاتولو سره لولي او دوی لومړی غوږ ورته نیسي او په دویم ځل یې ورپسې تکراروي. بیا یې په څو تنو زده کوونکو لولي او نور یې غلطی اصلاح کوي.<br>او بیا ښوونکی دوی په دریو ډلو ویشي او د لوست یوه یوه مرحله ورباندې تکراروي او بیا له یو اوبل څخه پوښتنې کوي او ښوونکی د ټولګي نظم کنټرولوي او ستونزمنې کلمې هم ورته ښیي. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک د لوست آیت په حرکاتو او رواني ویلی شي؟<br>۲. څوک د لوست آیت د تجوید موافق تلاوت کولای شي؟<br>۳. څوک کولای شي ﴿قَفَّيۡنَا﴾ کلمه په تخته ولیکي؟<br>٤. څوک ﴿فَلَا يُخَفَّفُ﴾ کلمه په سمه توګه تلفظ کولای شي؟ | زده کوونکي ځوابونه وایي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي څو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۳۶

## سرلیک: البقرة سورت د ۸۷ آیت دویمه برخه

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.
- د لوست آیت په رواني توګه ولوستلی شي.
- د لوست د آیت څخه قلبي خوشحالي احساس کړي.

**اړینه پوهه**

ژباړه: نو خامخا ورکړې و موږ موسی ته کتاب (تورات) او پرله پسې استولي وو موږ پس له موسی نور رسولان (لکه یوشع، داود، سلیمان، یحیی او زکریا) او ورکړې وې موږ عیسی زوی د مریمې ته (معجزې) ښکاره او قوي کړی و موږ عیسی په روح پاک سره (چې جبرئیل یا انجیل یا اسم اعظم یا عیسوي روح دی).

آیا نو هرکله چې رابه غی تاسې ته کوم رسول په هغه احکامو سره چې ستاسو نفسونو به نه خوښول، نو تکبر کاوه تاسې له منلو د هغو احکامو، نو یوه ډله انبیاء مو دروغجن وبلل (لکه محمد، عیسی او موسی) او بله ډله انبیاء مو شهیدان کړل (لکه: زکریا، یحیی او شعیب علیهم السلام).

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له روغبړ، ټولګي تنظیمولو، حاضرۍ اخستلو او کورنۍ دندې کتلو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي لکه:<br>- څوک د تیر لوست آیت په حرکاتو ویلای شي؟<br>- د تېر لوست آیت څوک په رواني تلاوت کولای شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>وروسته ښوونکی د نوي لوست سرلیک په تخته لیکي او د زده کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته رااړوي. لومړی له دوی څخه غواړي څو لوست په پټه خوله له ځانونو سره ووایي.<br>بیا لوست ورته پیلوي او د تجوید مطابق د لوست آیت ورته تلاوت کوي. وروسته له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي څو لوست د ټولګیوالو په وړاندې ولولي، ښوونکی یې غلطۍ اصلاح کوي او تشویقوي یې. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | وروسته ځو تنه زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي او د لوست یوه یوه کلمه پرې تلفظ کوي او بیا یې په تخته پرې لیکي. په پای کې د زده کوونکو ارزونه کوي. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. ځوک د لوست آیت په حرکاتو سره لوستلی شي؟<br>۲. ځوک د لوست آیت په رواني لوستلي شي؟<br>۳. ځوک کولای شي ﴿بِرُوحِ الْقُدُسِ﴾ کلمه په تخته ولیکي؟<br>٤. ځوک کولای شي ﴿أَنفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ﴾ کلمه سمه تلفظ کړي؟ | زده کوونکي ځوابونه وایي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي ځو د لوست آیت په کورونو کې ښه زده او په کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۳۷

## سرلیک: البقرة سورت ۸۸ آیت

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د لوست آیت په حرکاتو او رواني ولوستلی شي.
- د لوست د آیت ستونزمنې کلمې هجا او اعراب کړی شي.
- ددې آیت په زده کولو یې روح خوشحاله شي.

**اړینه پوهه**

د آیت ژباړه: او وایي (تمسخوًا) زړونه مو په پردو کې دي (وینا پرې اثر نکوي داسې نده) بلکې لعنت کړی دی پردوی الله ﷻ په سبب د کفر ددوی نو ډیر لږ (له دوی څخه) ایمان راوړی.

**تفسیر**

یهودانو د خپلو نفسونو د ستایلو په وخت کې داسې ویل چې زموږ زړونه په غلافو او کڅوړو کې ساتل شوي دي او پرته زموږ له خپل دین څخه بل کوم دین پکې نشي ننوتلی او نه بله کومه خبره څه اثر او اغیزه وربانديې اچولی شي. موږ د بل چا په چاپلوسی، تملق، سحر او کرشمې نه غولیږو او نه یې تابعداري کولای شو الله تعالی فرمایي: دوی بالکل دروغ ویونکي دي ځکه دوی د خپل کفر په سبب د الله ﷻ له خوا ملعون او دده له رحمته شړل شوي دي نو دوی د حق دین منونکي نه دي او له دوی څخه ډیر لږ د ایمان په دولت مشرف کیږي.

| وخت | ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو له ترسره کولو وروسته د نوي لوست عنوان (البقرة سورت ۸۸ آیت) په تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي. | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست بهیر:**<br>لوست ورته په ښه غږ پیل کوي او د تجوید په قواعدو سنبال یې ورته تلاوت کوي وروسته څو زده کوونکو ته دنده ورکوي څو لوست لومړی د ځانونو سره او بیا د ټولګي والو په وړاندې ووایي.<br>بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او د لوست ځنې کلمې لکه ﴿غُلْفٌ،قُلُوبُنَا،لَّعَنَهُمُ اللَّه﴾ تلفظ او بیا په تخته ولیکلي.<br>بیا ښوونکی زده کوونکي په دریو ډلو ویشي او هرې ډلې ته د لوست یوه یوه مرحله سپاري څو د یو او بل په مرسته هغه ښه زده کړي. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک د لوست آیت په حرکاتو لوستلی شي؟<br>۲. څوک د لوست آیت په رواني لوستلی شي؟<br>۳. څوک ﴿لَّعَنَهُمُ اللَّه ﴾ په ښه توګه تلفظ کولای شي؟<br>٤. څوک د ﴿غُلْفٌ ﴾ کلمه په تخته لیکلی شي؟ | زده کوونکي ځوابونه وایي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده سپاري څو لوست د مور او پلار په وړاندې ولولي او بیا یې په کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**لوست: ۳۸**

## سرليک: البقرة سورت ۸۹ آيت لومړۍ برخه

**صفحه:**

**وخت: يو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست آيت په حرکاتو او رواني ولوستلی شي.
- د لوست آيت د تجويد موافق تلاوت کړی شي.
- د لوست آيت يې ايمان محکم کړي.

**اړينه پوهه:**

په ﴿جَاءَهُمْ﴾ کلمه کې متصل مد راغلی هرکله چې د مد توری او سبب يې په يوه کلمه کې راغلی دی نو دغه مد د يوه څخه تر شپږو حرکتونو پورې اوږديږي او د تجويد له مخې يې حکم واجب دی.

په ﴿مِّنْ عِندِ اللّهِ﴾ کلمه کې د نون ساکن دوه حکمونه شتون لري: اظهار او اخفاء البته په لومړي ساکن نون کې اظهار او په دويم ساکن نون کې اخفاء کيږي.

په ﴿مُصَدِّقٌ لِّمَا﴾ کلمه کې ادغام له غنې پرته شتون لري ځکه له تنوين وروسته د لام حرف راغلی دی.

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سريزه ۵ دقيقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو له ترسره کولو وروسته د نوي لوست د سرليک په هکله له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي او بيا يې پرتخته ليکي (البقرة سورت د ۸۹ آيت لومړۍ برخه). | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست بهير:** وروسته ښوونکی لوست ورته د تجويد موافق تلاوت کوي او دوی ورته غوږ نيسي، بيا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست تکرار کړي. بيا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او د لوست آيت اول په حرکاتو او بيا په رواني تلاوت کړي. او بيا ځنې کلمې په تخته هم وليکي. | د لوست په بهير کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱. د لوست آيت څوک په حرکاتو لوستلی شي؟<br>۲. د لوست آيت څوک په روانۍ لوستلی شي؟<br>۳. د لوست آيت د تجويد په قواعدو سنبال څوک ويلی شي؟<br>٤. څوک کولای شي ﴿مِّنْ عِندِ اللّهِ﴾ کلمه سمه تلفظ کړي؟ | زده کوونکي ځوابونه وايي. |
| ۵ دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي بايد په کورونو کې لوست ولولي او بيا يې په کتابچو کې وليکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: ۳۹

## سرلیک: (البقرة سورت (۸۹ دویمه برخه)

**صفحه:**

**وخت: یو درسی ساعت**

**موخې- زده کوونکي باید:**

- دلوست آیت په حرکاتو ولوستل شي.
- د لوست آیت په روانۍ ولوستلی شي.
- دلوست د آیت ځینې کلمې اعراب کړی شي.
- د لوست د آیت په لوستلو یې ایمان او عقیده ټینګه شي.

**اړینه پوهه:**

په «مِنۡ قَبۡلُ» کلمه کې په ساکن نون کې اخفاء کیږي ځکه د ساکن نون څخه وروسته د «ق» توری راغلی دی چې د اخفاء له تورو څخه دی د الله لفظ مفخم یعنې ډک اداء کیږي ځکه ماقبل کلمه یې په ضمې سره ختم شوې ده او دا د تجوید قاعده هم ده چې د الله له لفظ څخه په مخکښې حرف ضمه یا فتحه وي نو د الله لفظ ډک ویل کیږي.

| وخت | د ښوونکی کړنی | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه | ښاغلی ښونکی د معدماتي چارو تر سره کولو وروسته د نوي لوست سرلیک (البقرة سورت د۸۹ آیت دویمه برخه) په تخته لیکي ا و بیا له زده کوونکو څخه غواړي څولوست په پټه خوله له ځانونو سره ولولي. | مقدماتي چارې سرته رسوي. |
| د لوست بهیر ۲۵ | بیا له زده کوونکو څخه غواړي څوک دغه نیمه آیت د تجوید موافق ټولګیوالو ته لوستلی شي او ښوونکی یې غلطۍ اصلاح کوي. وروسته ښوونکی ورته لوست وایي او دوی یې ور پسې تکراروي. بیا زده کوونکو ته وخت ورکوي څو د ښوونکي څخه تجویدي پوښتنې وکړي. | د لوست په بهیر کې فعاله برخه اخلي. ځوابونه وایي. |
| ارزونه | **ارزونه:**<br>۱- څوک د لوست آیت په حرکاتو او روانۍ تلاوت کولای شي؟<br>۲- څوک د لوست د آیت کلمې هجا او اعراب کولای شي؟<br>۳- څوک ( یَسۡتَفۡتِحُونَ) کلمه سمه تلفظ کولای شي؟<br>۴- څوک ( مِن قَبۡلُ ) کلمه په تخته لیکلی شي؟ | |
| او کورنی دنده | **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي څولوست په کورونو کې ولولي او په خپلو کتابچو کې یې ولیکي. | کورنۍ دنده سرته رسوي. |

## لوست: ۴۰

## سرلیک: (البقرة سورت ۹۰ آیت)

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید.**

- دلوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.
- د لوست آیت په روانۍ ولوستلی شي.
- دلوست د آیت ځینې کلمې هجا او اعراب کړی شي.
- د لوست د آیت په لوستلو یې ایمان او عقیده ټینګه شي.

**اړینه پوهه:**

د آیت ژباړه: بد دی هغه څه چې پلورلي دي دوی په هغه سره ځانونه خپل(او هغه دادی) چې کافران کیږي په هغه قرآن چې نازل کړی دی الله (داکفر) په سبب ددې حسد او کینې دی چې (ولې) ناز لوي الله له خپل فضله په هغه چا چې اراده وکړي له بندګانو خپلو، نواخته شول په یوه غضب (چې کفر دی په محمد او قرآن) د پاسه د بل غضب (چې کفر دی په عیسی او انجیل).

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو له تر سره کولو وروسته د نوي لوست د سرلیک په هکله خو یوه انګیزه پیدا شي پوښتنه کوي او بیایې په تخته لیکي.<br>وروسته زده کوونکو ته دنده ورکوي څولوست په خپلو کې سره ولولي او ستونزمنې کلمې له ښوونکي څخه وپوښتي. | مقدماتي چارې سرته رسوي. |
| د لوست بهیر ۲۵ دقیقې | بیا ښوونکی لوست ورته په مناسب آواز د تجوید په مراعاتولو پیل کوي او زده کونکو ته وایي چې غوږ ونیسي.<br>بیا یې په څو زده کوونکو لولي او ښوونکی یې غلطۍ اصلاح کوي. بیا د لوست څو کلمې په تخته لیکلي او تلفظ کوي یې پرې. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ارزونه | **ارزونه:**<br>۱- دلوست آیت څوک په حرکاتو لوستلی شي؟<br>۲- د لوست آیت څوک په روانۍ لوستلی شي؟<br>۳- څوک د عذاب کلمه په تخته لیکلای شي؟<br>۴- څوک (وللکافرین) کلمه په سمه توګه تلاوت کولای شي؟ | ځوابونه وایي. |
| کورنۍ دنده ۱۰ دقیقې | **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته دنده سپاري څو د لوست آیت په حرکاتو او روانۍ ولولي او بیایې په کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده تر سره کوي. |

## لوست: ۴۱

## سرلیک: (البقرة سورت ۹۱ آیت)

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت.**

**موخې: زده کوونکي باید.**

- دلوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.
- دلوست آیت په روانۍ ولوستلی شي.
- دلوست د آیت ځینې کلمې هجا او اعراب کړي.
- د آیت په زده کولو یې عقیده نوره هم ټینګه شي.

**اړینه پوهه:**

د آیت ژباړه: او کله چې وویل شي دوی ته چې ایمان راوړئ په هغو (کتابو) چې نازل کړي دي الله. دوی وایي موږ ایمان راوړی په هغه کتاب چې نازل کړی شوی دی پر موږ(یعنې تورات) حال دا چې کافران کیږي په هغه کتـــاب چې له هغه پرته دی یعنې انجیل او قرآن حال داچې دا نور کتابونه هم) حق دي. مصدق دي د هغه کتاب چې لـــه دوی سره دی. ووایه (اې محمده! دغو یهودانوته) نو ولې به وژل تاسې انبیاء د الله که چیرې وی تاســـې ایمـــان راوړونکي (په تورات).

| د زده کوونکو کړنې | د ښوونکي کړنې | وخت |
| --- | --- | --- |
| مقدماتي چـــارې ســـرته رسوي.<br><br><br><br>د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. | ښاغلی ښوونکی له حال پوښتنې، ټولګی تنظیمولو، حاضري اخستلو او کورنۍ دندې کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي وایي:<br>څوک کولای شي د تیر لوست په حرکاتو او روانۍ ووایي؟<br>څوک کولای شي د تیر لوست آیت د تجوید په مراعاتولو تـــلاوت کړي؟<br>وروسته ښوونکی د نوي لوست سرلیک (البقرة سورت ۹۱ آیـــت | سریزه ۵ دقیقې<br><br><br><br>د لوست بهیر ۲۵دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| | لومړۍ برخه) په تخته لیکي او لوست پیلوي لومړی له زده کوونکو څخه غواړي څولوست د ځانونو سره ووایي بیا ښوونکی لوست وایي او زده کوونکی یې ورپسې تکرار وي- بیایې څو زده کوونکي وایي او نوو ټولګی ورته غوږ نیسي.<br>کله چې ښوونکی ښه ډاډمن شو بیا ددوی ارزونه کوي. | ځوابونه وایي. |
| ارزونه | **ارزونه:**<br>۱-څوک د لوست آیت په حرکاتو سره لوستلی شي؟<br>۲- څوک د لوست آیت په روانۍ لوستلی شي؟<br>۳- څوک «علینا» کلمه لیکلی شي؟<br>۴- څوک (وَیَكْفُرُونَ بِمَا وَرَاءَهُ) سم تلفظ کولای شي؟ | کورنۍ دنده تر سره کوي |
| او کورنی دنده<br>۱۰ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څولوست دمور او پلار په وړاندې څو ځله ووایي او بیا یې په کتابچو کې ولیکي. | |

## لوست: ۴۲

## سرلیک: (دالبقرۀ سورت ۹۱ آیت دویمه برخه)

**صفحه:**

**وخت: یودرسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

-دلوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.

– دلوست آیت په روانۍ ولوستلی شي.

– دلوست د آیت سختې کلمې هجا او اعراب کړی شي.

– دلوست آیت يې د انبیاوو سره مینه زیاته کړي.

**اړینه پوهه:**

| وخت | د ښوونکی کړنی | د زده کوونکو کړني |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې<br><br><br><br><br>د لوست بهیر ۲۵ دقیقې<br><br><br><br><br><br><br>ارزونه<br><br><br><br><br>او کورنۍ دنده<br>۱۰ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو تر سره کولو وروسته د نوي لوست د سرلیک په هکله د زده کوونکو شخه پوښتنه کوي اوله ځواب اوریدلو وروسته يې په تختې لیکي (البقرۀ ۹۱ دویمه برخه) بیا د زده کوونکو پاملرنه د خپلو کتابونو په لوري را اړوي او لومړی له دوی شخه غواړي ځولوست له ځانونو سره مطالعه کړي. بیايې په مناسب آواز د تجوید په مراعاتولودوی ته پیلوي او دوی ورته غوږ نیسي بیا له ځوتنو شخه غواړي چې د لوست آیت ووايي او دوی يې ورپسې تکراروي.<br>بیا زده کوونکي په دریو ډلو ویشي او هرې ډلې ته د لوست یوه مرحله ور په ګوته کوي ځو د هغه په هکله یو د بل سره بحث او څیړنه وکړي او بیا يې استازي د ټولګیوالو په وړاندې تکرار کړي.<br><br>**ارزونه:**<br>۱–څوک د آیت دا برخه په حرکاتو ویلی شي؟<br>۲– څوک يې په روانۍ تلاوت کولای شي؟<br>۳– څوک (تَقْتُلُونَ) کلمه په تخته لیکلای شي؟<br>۴– څوک (أَنبِيَاءَ اللّٰهِ) سم تلفظ کولای شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي لوست په خپلو کتابچو کې لیکلي. | مقدماتي چارې سرته رسوي.<br><br><br>د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي.<br><br><br><br>ځوابونه وایي.<br><br><br><br><br>کورنۍ دنده تر سره کوي |

## لوست: ۴۳

## سرلیک: (البقرة سورت ۹۲ آیت)

**صفحه:**

**وخت: یودرسي ساعت**

**موخې– زده کوونکي باید:**

– دغه آيت په حرکاتو او روانۍ ولوستلای شي؟

– د دغه آيت ستونزمنې کلمې هجا او اعراب کړی شي؟

– دغه آیت د تجوید په مراعاتولو تلاوت کړي؟

– د دغه او هر آیت په زده کولو يې عقيدې او ايمانونه مضبوط شي.

**اړينه پوهه:** د آيت ژباړه: او خامخا په تحقيق سره موسیٰ‌علیه‌السلام راوړې وې تاسې ته ښکاره (معجزې) بيا ونيوه تاسې خوسی (په خدايي سره)پس له تللو د موسی (طورغره ته) حال داچې تاسې وی ظالمان (پرځانو خپلو په دې معبود نيولو د خوسي)

تفسير: يعنې په خپله حضرت موسیٰ‌علیه‌السلام چې تاسې د هغه په شريعت قايم يئ او د نورو شريعتونو څخه انکار کوئ تاسوته يې ډېرې ښکاره نښې او معجزې دربښودې (لکه همساء، يد بيضاء، د سيند څيرول او نور) مګر کله چې موسیٰ‌علیه‌السلام د څو ورځو له پاره د طور غره ته ولاړ نو تاسې د هغه په غيا کې خوسی خپل معبود وټاکه، حال داچې موسی ژوندی او د نبوت خاوند و نو پر هغه ستاسو ايمان چېرې و چې نن د آخرالزمان رسول صلی الله عليه وسلم د بغض، حسد اورخې له امله تاسې موسوي شريعت داسې ټينګ نيولی دی چې د الله احکامو ته هم غوږ نږدئ بيشکه تاسو ظالمان يئ او ستاسو پلرونه او نيکونه هم ظالمان وو.

| وخت | د ښوونکی کړنی | د زده کوونکو کړني |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو له وزګاریدو وروسته د نوي لوست سرلیک (البقرة سورت۹۲ آیت په تخته لیکلي او زده کوونکي ټول خپلو کتابونو ته متوجه کوي او مخکې له دې چې لوست پیل کړي له زده کوونکو څخه غواړي چې څوک د لوست آیت په حرکاتو یا رواني ویلای شي؟ | مقدماتي چارې سرته رسوي. |
| د لوست بهیر دقیقې۲۵ | وروسته ښونکی په خپله لوست ورته تلاوت کوي او دوی ورته غوږ نیسي بیایې په څو تنو زده کوونکو باندې لولي او دوی ته وخت ورکوي خو د ښوونکي څخه خپلې پوښتنې وکړي او ښوونکی ورته وایي چې ستاسو په پوښتنو خوشالیږم او هیڅ پوښتنه کمه او بیکاره نه ګنم.<br>کله چې ښه مطمئن او ډاډه شو بیا عمومي ارزونه کوي او د هر ځواب لپاره یو تن ټاکي. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي.<br>ځوابونه وایي. |
| ارزونه<br>او کورنی دنده<br>۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- دلوست آیت په حرکاتو ولولئ.<br>۲- دلوست آیت په رواني تلاوت کړئ.<br>۳- دلوست آیت د تجوید په مراعاتولو تلاوت کړئ.<br>۴- (وَلَقَدْ) کلمه په تخته ولیکئ.<br>۵- (ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ) کلمه سمه تلفظ کړئ.<br>**کورنی دنده:**<br>لوست په خپلو کتابچو کې ولیکئ. | کورنی دنده تر سره کوي |

## لوست ۴۴

## سرلیک (البقرة سورت۹۳ آیت لومړۍ برخه)

صفحه:

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخي:** زده کوونکي باید:

- آیت په حرکاتو ولولي او توري يې را په ګوته او اعراب يې بیان کړي.
- آیت د تجوید په مراعاتولو په روانۍ تلاوت کړي.
- له آیت څخه دا عقیده واخلي چي د عبادت لایق یوازې الله دی نه خوسکی او بل څه.

**اړینه پوهه:**

د آیت ژباړه: او (یاد کړئ) هغه وخت چې واخست موږ محکم عهد د تاسې (په منلو د تلاوت) او پورته کړ مـوږ پاس په (سرد) د تاسې د طور (غر) (او موویل) واخلئ هغه (احکام) چې درکړي دي موږ تاسې ته په ښه کوشش او واورئ (په تدبر سره) وویل (یهودانو) اوریدلي ده موږ (ستا خبره) او نه دی منلی موږ (ستاحکم) او ورڅښل شوې وه په زړونو ددوی کې (مینه د) خوسي په سبب د کفر ددوی. وروایه (اې محمده! دوی ته) بد دی هغه شی چې امر کوي تاسې ته په هغه (چې کفر دی په محمد او قرآن) ایمان ستاسې که چېرې يئ تاسې ایمان راوړونکي.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو په تر سره کولو سـره د نـوي لوست سرلیک (البقرة سورت د۹۳ آیت لومړۍ برخه) پـه تختـه لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي څوک دغه آیت په حرکاتو او روانۍ سره لوستلی شي؟ | مقدماتي چـارې سـرته رسوي. |
| د لوست بهیر ۲۵دقیقې | وروسته ښوونکی د تجوید په مراعاتولو سنبال آیت تلاوت کوي او بیا له خو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست د ټولګیوالو په وړاندې ووایي بیا یوه یوه کلمه وربانديې هجا او لیکی او بل تن ته دنده ورکوي څو دغو کلمو ته حرکتونه ولیکي. کله چې ښـه لــه لوست څخه ډاډمن شو بیا عمومي ارزونه کوي. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ارزونه | **ارزونه:**<br>۱- څوک د لوست آیت په حرکاتو لوستلی شي؟<br>۲-څوک د لوست آیت په روانۍ لوستلی شي؟ | ځوابونه وایي. |
| او کورنۍ دنده | ۳-څوک لوست د تجوید په مراعاتولو تلاوت کولای شي؟<br>۴- څوک لوست په خواږه آواز لوستلی شي؟ | کورنۍ دنده تر سره کوي |
| ۱۰ دقیقې | ۵-څوک (بِقُوَّةٍ وَاسْمَعُوا) کلمه سمه تلفظ او بیا په تخته لیکلی شي؟ | |

## لوست: ۴۵

## سرلیک: (البقرة سورت د ۹۳ آیت دویمه برخه)

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې: زده کونکي باید:**

-دلوست آیت په حرکتونو ولوستلی شي.

- د لوست آیت په روانۍ وویلی شي.

- دلوست د آیت ځینې کلمې هجاء او ولیکلی شي.

- دلوست آیت یې عقیده په الله ټینګه کړي نه په نورو مخلوقاتو.

**اړینه پوهه:**

په (إِن كُنتُم) کلمه کې دوه ځله اخفاء راغلې ده اول د (إِن) په حرف کې ځکه د ساکن نون څخه وروسته کاف توری راغلی چې د اخفاء له نورو څخه دی. دویم په (كُنتُم) کې د ساکن نون څخه وروسته «ت» توری راغلی چې د اخفاء له تورو څخه دی.

البته مخکې موږویل چې اخفا پټولوته ویل کیږي د اظهار په خلاف او کله چې د ساکن نون او تنوین څخه وروسته د اخفاء حرفونه راشي هلته اخفاء کیږي.

د اخفاء حرفونه دادي: «ذ، ث، د، ص، ک، ج، ش، ق، س، ز، ف، ت، ط، ض،ظ» په لاندې شعر کې دهرې کلمې په پیل کې د اخفاء توری دي.

ذا ثنا دارد صفت کم جادشخص قد سما

زندګی فوز تقوی طیب ضع ظالما

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی دمقدماتي چارو له وزګاریدو وروسته د نوي لوست سرلیک (البقرة سورت د ۹۳ آیت دویمه برخه) په تخته لیکي او لوست د تجوید په مراعاتولو سره پیلوي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي. | مقدماتي چارې سرته رسوي. |
| د لوست بهیر ۲۵دقیقې | بیا لوست په څوتنو زده کوونکو وایي او ټولګیوال ورته غوږ نیسي او ښوونکی غلطۍ اصلاح کوي او زده کوونکي تشویقوي.<br>بیا زده کوونکي په دریو ډلو ویشي او د لوست یوه یوه مرحله وربانديې لولي او بیایې یوې او بلې ډلې ته تکراروي. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ارزونه | **ارزونه:**<br>۱- دلوست آیت څوک په حرکتونو او روانۍ لوستلی شي؟<br>۲- د اخفاء حرفونه څه او کوم دي؟<br>۳-څوک (قُلْ بِئْسَمَا) کلمه سمه تلفظ کولی شي؟<br>۴- څوک (إِيمَانُكُم) کلمه په تخته لیکلای شي؟ | ځوابونه وایي. |
| او کورنۍ دنده ۱۰ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>دلوست آیت دې په کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده تر سره کوي |

## لوست: ۴۶

## سرلیک: (البقرة سورت ۹۳ آیت دریمه برخه)

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې– زده کوونکي باید:**

– دلوست آیت په حرکتونو او روانۍ ولوستلی شي.

– دلوست آیت د تجوید موافق تلاوت کړی شي.

– دلوست له آیت څخه د اعقیده واخلي چې د عبادت لایق یوازې الله دی نه خوسکی او نور مخلوقات.

**اړینه پوهه**

دمخکیني لوست سره اړیکه لري.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی دمقدماتي چارو څخه وروسته د نوي لوست سرلیک البقرة سورت د ۹۳ آیت دویمه برخه) په تخته لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست له ځانونو سره ولولي.<br>وروسته ښوونکی لوست د تجوید په قواعدو سنبال ورته تلاوت کوي او دوی ورته غوږ نیسي. | مقدماتي چارې سرته رسوي. |
| د لوست بهیر ۲۵ دقیقې | بیایې په خو زده کوونکو لولي او ټولګیوال ورته غوږ نیسي وروسته وخت ورکوي څو یو له بل څخه پوښتنې وکړي، څه کلمې یو په بل هجا او اعراب کړي. کله چې ښوونکي ښه لوست ورته تکرار او مشق کړي بیا یې ارزونه کوي او د هرې پوښتنې لپاره نفر ټاکي. | د لوست په بهیر کې فعاله دنده اخلې. |
| ارزونه | **ارزونه:**<br>۱– فلانیه ته کولی شې لوست په حرکتونو ولولې؟<br>۲– فلانیه ته کولی شې چې لوست په روانۍ ولولې؟<br>۳– فلانیه ته کولی شی (إِيمَانُكُمْ) کلمه په تخته ولیکې؟<br>۴– فلانیه ته کولی شې (قُلْ بِئْسَمَا) کلمه کلمه سمه تلفظ کړې شې؟ | ځوابونه یې وایې. |
| او کورنی دنده ۱۰ دقیقې | **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څولوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او که څوک کولای شي آیت له یاده حفظ کړي. | کورکی دنده تر سره کړي |

**لوست: ۴۷**

## سرلیک: البقرة سورت ۹۴ آیت

**صفحه:**

**وخت:۴۵ دقیقې**

**موخې– زده کوونکي باید:**

– دلوست آیت په حرکاتو ولولي.

– دلوست آیت په روانۍ ولولي.

– دلوست آیت یې عقیدې نورې هم محکمې کړي.

**اړینه پوهه:**

د آیت ژباړه: ووایه اې محمده! دوی ته) که چیرې وي تاسې ته دار آخرنی د الله په نزد په خلوص (او خصوص سره یوازې) بې له (نورو) خلکو نو هیله وکړئ د مرګ که چېرې یئ تاسې صادقان (په خپله دعوی کې).

تفسیر: یهودانو به ویل: پرته له موږ نه به په جنت کې بل هیڅوک نه داخلیږي او موږ ته هیڅ یو ربړ او عذاب نشته، الله تعالی فرمایي که په رښتیا سره تاسې جنتیان یاستئ نو له مړینې څخه ولې ویریږئ؟

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی کله چې له مقداماتي چارو څخه وزګار شي نو د نوي لوست سرلیک (البقرة سورت۹۴ آیت) په تخته لیکي او لومړی له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست له ځانونو سره ولولي، وروسته لوست ورته په ښه خواږه غږ سره د تجوید په مراعاتولو پیلوي او زده کوونکي ورته غوږ نیسي. | مقدماتي چارې سرته رسوي. |
| د لوست بهیر ۲۵ دقیقې | بیا څو زده کوونکو ته دنده سپاري چې لوست د ټولګیوالو په وړاندې ولولي، بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او د لوست ځنې کلمې په تخته ولیکي. او دریم زده کوونکي ته امر کوي څو هغه د تختې له مخې ووایي. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ارزونه | **ارزونه:**<br>۱– څوک د لوست آیت په حرکتونو او روانۍ ویلای شي؟<br>۲– څوک د لوست آیت د تجوید په مراعاتولو تلاوت کولای شي؟<br>۳– څوک (فَتَمَنَّوُاْ الْمَوْتَ) کلمه په تخته لیکلی او سمه تلفظ کولی شي؟ | ځوابونه وایي. |
| او کورنۍ دنده ۱۰ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده سپاري څو لوست په کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده تر سره کوي |

## لوست: ۴۸

## سرلیک: البقرة سورت ۹۵ آیت

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت:**

موخې- زده کوونکي باید:

- دغه آیت په حرکاتو او رواني ولولي.
- ددغه آیت کلمې هجا کړي او حرکتونه يې وپيژني.

**اړینه پوهه:**

د آیت ژباړه: اوله سره به هيله ونکړي د مرګ هیڅکله په سبب د هغو عملونو چې وړاندې ليږلي دي لاسونو ددوی (لکه د پیغمبرانو وژنه اونور دروغ) او الله ښه عالم دی په (احوالو) د ظالمانو.

تجوید: په (وَلَن يَتَمَنَّوْهُ) کلمه کې د ساکن نون څخه وروسته (ی) راغلې ده چې د ادغام (یرملون) له تورو څخه ده دلته باغنه ادغام کیږي. او په (أَبَدًا بِمَا) کلمه کې د تنوین څخه وروسته ((ب)) راغلې ده او اقلاب همدا یو توری لري چې «ب» ده نو کله چې دا توری د نون ساکن یا تنوین څخه وروسته راشي نو د تنوین یا ساکن نون په ځای «م» تلفظ کیږي له همدې وجې د تنوین او ساکن نون په سر وړوکی میم(م) لیکل کیږي.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سريزه ۵ دقيقې | ښاغلی ښوونکی کله چې له مقدماتي چارو څخه وزګار شي نو د نوي لوست سرلیک (البقرة سورت ۹۵ ایت) په تخته لیکلي او د زده کوونکو پاملرنه کتابونو ته را اړوي لوست ورته په خواږه او زړه راښکونکي غږ سره د تجوید په مراعاتولو پیلوي او زده | مقدماتي چارې سرته رسوي. |
| د لوست بهير ۲۵ دقيقې | کوونکي يې ورپسې تکراروي بيا له خو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست ولولي او ټولګيوال ورته غوږ ونيسي. بيا څو تنه د تختې مخې ته راغواړي څو د آیت ځینې کلمې په تخته ولیکي او بل زده کوونکی يې ولولي، لنډه داچې کله ښوونکی ښه ډاډ من شي نو د لوست ارزونه کوي: | د لوست په بهير کې فعاله ونډه اخلي. |
| | **ارزونه:** | ځوابونه وايي. |
| ارزونه | ۱- د لوست آیت څوک په حرکاتو لوستلی شي؟<br>۲- د لوست آیت څوک د تجوید په مراعاتولو لوستلی شي؟<br>۳- « قَدَّمَتْ » کلمه څوک پر تخته لیکلی شي؟ | |
| او کورنی دنده | ۴- (وَاللّٰهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ) کلمه څوک سمه تلفظ کولی شي؟<br>**کورنی دنده:** | |
| ۱۰ دقيقې | زده کوونکو ته دنده سپاري څو د لوست جدول عینا په همدې شکل په کتابچو کې ولیکي: | کورنی دنده تر سره کوي |

## لوست: ۴۸

## سرلیک: (البقرة سورت ۹۶ آیت)

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- دلوست آیت په حرکتونو سره ولولي
- دلوست آیت په روانۍ ولوستلی شي.
- دلوست آیت یې په روح او روان کې خوشحالي راولي.

**اړینه پوهه:**

د آیت ژباړه: او خامخا به مومې ته هرومرو دوی ډیر حریص د خلکو په ژوندانه باندې او ډیر (حریصان) له هغــو کسانو څخه (هم) چې مشرکان دي، خوښوي هریو د هغوی (یهودانو) که عمر ورکړی شي(او اوږد شي عمریــې) زرکاله او نه دی داکس خلاصوونکی دده له عذابه داچې ډیر عمر ورکړی شي او الله ښه لیدونکی (عالم) دی په هغه څه چې دوی یې کوي.

| وخت | د ښوونکی کړنی | د زده کوونکو کړني |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی کله چې له مقدماتي چارو څخه فارغ شي نو د نوي لوست سرلیک (البقرة سورت ۹۶ آیت) په تخته لیکــي او د زده کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته را اوړي او له دوی څخه غــواړي چې لوست په پټه خوله له ځانونو سره مطالعه کړي بیا ښوونکی په | مقدماتي چــارې ســرته رسوي. |
| د لوست بهیر ۲۵ دقیقې | مناسب آواز سره لوست ورته پیلوي او زده کوونکي یې وروســې تکراروي څو بیا زده کوونکو ته امر کوي چې لوست د کتاب لــه مخې ووایي او نور زده کوونکي ورته غوږ ونیسي.<br>بیا زده کوونکی په دریو ډلو ویشي او د لوست دری واړه پراوونه پرې مطالعه کوي څو په پای کې یو د بل څخه پوښتنې مطرح کړي. | د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ارزونه | **ارزونه:**<br>۱- دلوست آیت څوک په حرکاتو لوستلی شي؟<br>۲- دلوست آیت څوک په روانۍ لوستلی شي؟<br>۳- (الَّذِینَ) کلمه څوک په تخته لیکلی شي؟<br>۴- (یَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ یُعَمَّر) کلمه څوک صحیح تلفظ کولی شي؟ | ځوابونه وایي. |
| او کورنۍ دنده ۱۰ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته امر کوي څو لوست په کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده تر سره کوي |

## لوست: ۵۰

## سرلیک: (البقرة سورت ۹۶ آیت دویمه برخه)

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکی باید:**

- دلوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.
- دلوست آیت په روانۍ تلاوت کړی شي.
- دلوست له آیت سره لیوالتیا وښیي.

**اړینه پوهه**

**د آیت تفسیر:** یهودانو داسې خراب کارونه کړي دي چې له مرګه ډیر لرې تښتي او ویریږي چې وروسته له مړینې مورږ ته هیڅ یوه ګټه او فایده نه رسیږي تردې حده پورې چې له مشرکانو څخه هم دوی ډیر په ژوندي پاتې کیــدلو باندې حریصان دي- نو دعوی یې ډیر ښه ډول رد شوه.

| د زده کوونکو کړنې | د ښوونکي کړنې | وخت |
|---|---|---|
| مقدماتي چــارې ســرته رسوي.<br><br><br><br>د لوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي.<br><br><br><br><br>ځوابونه وایي.<br><br><br><br><br><br><br><br>کورنۍ دنده تر سره کوي | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو تر سره کولو وروســته د نــوي لوست سرلیک (البقرة سورت د ۹۶ آیت دویمه برخه) پــه تختــه لیکی او زده کوونکو ته امر کوي چې لوست له ځانونو سره ولولي. وروسته له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې څوک د لوست آیت په حرکاتو او روانۍ لوستلی شي؟ که چا مثبت ځواب ورکړ نو هغه یې لولي او نور زده کوونکي غوږ نیسي او که چا ونه شو ویلی نو بیا یې ښوونکی ورته په مناسب خواږه آواز د تجوید په مراعــاتولو سره لولي او دوی یې ورپسې تکراروي- بیا څو زده کوونکو تــه وایي چې لوست ولولي او تولګیوال یې واوري بیا څو تنه د تختــې مخې ته راغواړي اوځو کلمې وربانديې تلفــظ کــوي او بــل زده کوونکي ته وایي چې هغه په تخته ولیکي او بل زده کوونکی هغوته حرکتونه ورکړي.<br>**ارزونه:**<br>۱- څوک لوست په حرکاتو سره لوستلی شي؟<br>۲- څوک لوست په روانۍ لوستلی شي؟<br>۳- څوک (بِمُزَحْزِحِهِ) کلمه سمه تلفظ کولای شي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده سپاري څو لوست په کورونو کې ښه ضبط او په کتابچو کې ولیکي. | سریزه ۵ دقیقې<br><br><br><br>د لوست بهیر ۲۵دقیقې<br><br><br><br><br><br><br><br>ارزونه<br><br><br>او کورنۍ دنده<br><br>۱۰ دقیقې |

## لوست: ۵۱

## سرلیک: البقرۀ سورت ۹۷ آیت

**صفحه:**

**وخت: یودرسي ساعت**

**موخي ــ زده کوونکی باید:**

ــ دلوست آیت په حرکاتو و لوستلی شي.

دلوست آیت په رواني ولوستلی شي.

ــ دلوست د آیت څه کلمې هجا او اعراب ورکړی شي.

ــ دلوست په آیت یې عقیده نوره هم محکمه شي.

**اړینه پوهه**

دآیت ژباره: ووایه (اې محمده! دوی ته) هر څوک چې وي دښمن د جبریل (نودوی مري له قهره) ځکه بیشکه هغه (جبریل) نازل کړی دی قرآن ستا په زړه د الله په اذن او حکم ــ حال دا چې مصدق دی (داکتاب) دهغو کتـــابونو چې په خوا له ده دي (لکه تورات اوانجیل) او لارښوونکی دی او زیری ورکوونکی دی مومنانوته په جنت او د الله په لقاء سره).

**تجوید:** په (مَن كَانَ) کلمه کې اخفاء راغلې ده ځکه له ساکن نون څخه وروسته د لام توری راغلی چې د اخفاء له تورو څخه دی. او په «عَدُوًّاوَجِبرِيلَ» او« مُصَدِّقاً لِّمَا » کلموکې ادغام راغلی ځکه د تنوین څخه وروسته د لام توری راغلی او لام د ادغام له حروفو څخه دی له غنې پرته.

په "بین،" او" یدیه" کلمو کې د لین مد دی ځکه ماقبل توری یې مفتوح دی.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چاروڅخـــه وروســـته د نـــوي لوســـت سرلیک(۹۷) آیت په تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتـــابونو تـــه متوجه کوي او بیا لوست په خوارہ آواز د تجوید په مراعاتولو ســـنبال ورته پیلوي اوله دوی څخه غواړي چې لومړی ځل غوږ نیسي او دویم ځل یې ورپسې تکرار کړي. | مقدماتي چارې ســـرته رسوي. دلوست په بهیر کـــې فعاله برخه اخلي. |
| د لوست بهیـــر ۲۵ دقیقې | بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې په نوبت سره آیت ولولي هم په حرکاتواو هم په رواني سره . بیا څوتنه تختې ته راغوړي څو دلوست ځینې کلمې په تخته ولیکي. اوبل زده کوونکی حرکات ورکړي. | ځوابونه وایي. |
| ارزونه اوکورنۍ دنده ۱۰ دقیقې | **ارزونه:** ۱ــ څوک د لوست آیت په حرکاتو او رواني لوستلی شي؟ ۲ــ څوک د لوست آیت د تجوید په مراعاتولو لوستلی شي؟ ۳ــ څوک "عدوالجبریل " کلمه سمه تلفظ کولای شي؟ **کورنۍ دنده:** زده کوونکو ته دنده سپاري څولوست ښه ضبط او په کتـــابچو کـــې ولیکي. | کورنۍ دنـــده ســـرته رسوي |

## لوست: ۵۲

## سرليک: البقرۀ سورت ۹۸ آيت

**صفحه:**

**وخت:** يودرسي ساعت

**موخې ــ زده کوونکي بايد:**

ــ دلوست آيت په حرکاتو او رواني ولوستلی شي.

ــ دلوست آيت د تجويد په مراعاتولو تلاوت کړی شي.

د لوست آيت يې په عقيده کې پياوړتيا راولي .

**اړينه پوهه**

**د آيت ژباړه:** هر څوک چې دالله اودده دملايکواودده درسولانو اوپه (ځانګړې توګه) دجبريل اوميکائيل دښمن وي نو بيشکه الله د کافران لپاره دښمن دی.

**تفسير:** يهودانو په ويل هغه پرښته (جبريل عليه السلام) چې پر (حضرت محمد صلی الله عليه وسلم) باندې وحی راوړې له موږ سره دښمني لري اوزموږ پلرونوته دده له لاسه لوی ربړونه پيښ شوي دي که له جبريل پرته کومې بلې پرښتې دوی ته وحی راوړې وای، نوموږ به په (محمد صلی الله عليه وسلم) ايمان راوړی وای نو ځکه الله فرمايي: ټولې پرښتې هغه څه کوي چې دالله له لوري دوی پرې ماموري شوې وې او له خپله ځانه هيڅ شی نکوي نوکوم کسان چې له دوی سره دښمني کوي الله دهغوی دښمن دی.

| وخت | دښوونکي کړنې | زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سريزه ۵ دقيقې | ښاغلی ښوونکی کله چې د مقدماتي چارو څخه فارغ شو نو د نوي لوست سرليک (البقرة سورت ۹۸ آيت) په تخته ليکي او د زده کوونکو پاملرنه خپلو کتابونوته را اړوي ــ لوست پيلوي او زده کوونکي غوږ ورته نيسي، بيا له څو زده کوونکوڅخه غواړي چې لوست د ټولګيوالو په وړاندې ولولي اوبيا ښوونکی دوی ته وخت ورکوي څو د ستونزمندو کلمو پوښتنې مطرح کړي. | مقدماتي چارې سره ته رسوي. |
| دلوست بهير ۲۵ دقيقې | وروسته زده کوونکي په دريو ډلو ويشي او يوه يوه مرحله د لوست ورکوي څو ښه په غور يې مطالعه کړي اوبيا له يوبل څخه سوال او ځواب مطرح کړي.<br>**ارزونه:**<br>۱ــ څوک دلوست آيت په حرکاتو لوستلی شي؟<br>۲ــ څوک دلوست آيت په رواني د تجويد په مراعاتولو تلاوت کولی شي؟<br>۳ــ څوک "عدوالجبربل " کلمه په ښه توګه تلفظ کولی شي؟ | دلوست په بهير کې فعاله برخه اخلي.<br><br>ځوابونه وايي. |
| ارزونه اوکورنی دنده ۱۰ دقيقې | **کورنۍدنده:**<br>زده کوونکوته دنده ورکوي څو لوست په خپلو کتابچو کې وليکي. | کورنۍ دنده سرته ورسوي. |

## لوست: ۵۳

## سرلیک: البقرة سورت ۹۹ آیت

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې ــ زده کوونکي باید:**

ــ دلوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.

ــ د آیت کلمې هجاء اواعراب یې وویلی شي.

ــ آیت د تجوید په مراعاتولو تلاوت کړی شي.

ــ آیت یې د زړه د خوشحالۍ لامل شي.

**اړینه پوهه**

**ژباره:**

**تجوید:** په " وَلَقَدْ " کلمه کې کبرا (لویه) قلقله راغلې ده ځکه دال توری د قلقلې له تورو "قطب جد" څخه دی او د کلمې په ځای کې راغلی دی ــ قلقله د غږ حرکت اوخوځښت ته ویل کیږي . او دلته د حرف حرکت دی په خپل مخرج کې یا په بله وینا یو غږ دی چې د جهد او شدت د صفتونو له یو ځای کیدو څخه حاصلیږي.

البته که چیرې د قلقلې توری دکلمې په منځ کې شتون ولري نوهغه د صغرا (وړوکې) قلقلې په نامه یادیږي چــې د لویې قلقلې په پر تله یې قوت لږ څه کم دی لکه: یدخلون،یبخلون،یجعلون،یطمعون.

| وخت | دښوونکی کړنې | د زده کوونکو کړنې |
| --- | --- | --- |
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو تر سره کولو وروسته د نوي لوست سرلیک (البقرة سورت۹۹آیت) په تخته لیکي اولوست دتجوید په مراعاتولو سره پیلوي او زده کوونکي غوږ ورته نیسي. وروسته یې په خوتنو زده کوونکو هم لولي ــ بیا وخت ورکوي څو له ښوونکي څخه خپلې پوښتنې وکړي او ښوونکی هم یوه پوښته غبي او ناخوښه نه ګڼي او په ډیره پرانیزې تندې ځوابونه ورکوي. | مقدماتي چارې سرته رسوي. |
| بهیر دلوست ۲۵ دقیقې | بالآخره د لوست ارزونه کوي:<br>۱ــ څوک د لوست آیت په حرکاتو روانۍ لوستلی شي؟<br>۲ــ ایا داسې څوک شته چې آیت د پارې له مخې ووایئ؟<br>۳ــ څوک کولای شي "الاالفاسقون" کلمه سمه تلفظ کړی شي؟ | دلوست بهیرکې فعاله ونډه اخلي |
| ارزونه اوکورنۍ دنده ۱۰ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته امر کوي چی آیت په کور کې مشق او په کتابچو کې ولیکي. | ځوابونه وایي |

## لوست: ۵۴

## سرلیک: البقرة ۱۰۰ آیت

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې ـــ زده کوونکي باید:**

ـــ د لوست د آیت کلمې هجاء او حرکات یې وښودلی شي.

ـــ د آیت د کلمو تلفظ په سمه توګه وکولای شي.

ـــ آیت د تجوید مطابق تلاوت کړای شي.

ـــ په آیت دا عقیده ولري چې مسلمان ژمنه نه ماتویي.

**اړینه پوهه**

**د آیت ژباړه:** اوهرومروپه تحقیق نازل کړي دي موږ تاته آیتونه روښانه اونه کافر کیږي په دې باندې مګر فاسقان (دالله له فرمانه وتونکي) آیا هرکله چې دوی به کومه ژمنه وکړه نو غورځاوه(هیر او ماتوه) دا ژمنه یوې ډلې له دوی څخه بلکې اکثره ددوی ایمان نه راوړي (په مومن به شیانو).

تفسیر: دا دهغوی پخوانی عادت دی کله چې دوی له الله تعالی یا(رسول الله) صلی الله علیه وسلم یا له بل چا سره ژمنه وکړي، نوبیا یوه ډله له دوی څخه له هغې ژمنې سترګې پټوي او تر شا یې غورځولي، بلکې ډیر داسې یهودان شته چې په تورات باندې یې هم ایمان نه دی راوړی نوداسې کسانونه ژمنه ماتول او په خپلو خبرو باندې نه دریدل کومه سخته خبره نده.

| وخت | دښوونکي کړنې | دزده کوونکو کړنې |
| --- | --- | --- |
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چاروځخه وروسته د نوي لوست د سرلیک په هکله له زده کوونکو ځخه پوښتنه کوي او له معلومولو وروسته یې په تخته لیکي البقرة سورت ۱۰۰ آیت | مقدماتي چارې سرته رسوي. |
| بهیر د لوست ۲۵ دقیقې | وروسته لوست په خواږه آواز او تجوید په مراعاتولوسره پیلوي او زده کوونکي ورته غوږ نیسي ــ بیا ځو زده کوونکي لوست لولي اونور ورته غوږ نیسي بالآخره کله چې ښوونکی د لوست له زده کړې ډاډ من شو نو ددوی ارزونه کوي | د لوست بهیر کې فعاله ونډه اخلي ځوابونه وایي. |
| ارزونه او کورنۍ دنده ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ــ ځوک به دغه آیت په حرکاتو سره ولوستلی شي؟<br>۲ــ ځوک به یې په روانۍ تلاوت کړای شي؟<br>۳ــ ځوک به "نبذه" کلمه په تخته ولیکلی شي؟<br>۴ــ ځوک په "اوکلما عاهدوا عهداً" کلمه په ښه توګه تلفظ کړای شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي ځو د لوست آیت په کتابچوکې ولیکي. | کورنۍ دنده تر سره کوي. |

## لوست ۵۵

## سرلیک: البقرة سورت ۱۰۱ آیت لومړی برخه

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې ــ زده کوونکی باید:**

ــ د لوست آیت په حرکتونو سره ولوستلی شي.

ــ د لوست آیت په روانۍ ولوستلی شي.

ــ دلوست له آیتونو سره یې مینه زیاته شي.

**اړینه پوهه**

**دآیت ژباړه او تفسیر**: اوهر کله چې راغی دوی ته رسول (محمدﷺ) دالله له طرفه چې مصدق دی دهغه کتاب (تـــورات) چې له دوی سره دی، نو وغورځاوه یوې ډلې کتابیانو دالله کتاب شاوو خپلوته (هیڅ عمل یې پرې ونکړ) لکه چې دوی نه پوهیږي .

**تفسیر**: له "رسول" څخه مراد (حضرت محمدصلی الله علیه وسلم)دی او له " ما معهم"څخه تورات او له کتاب الله نه هم همدا تورات مراد دی یعني کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم تشریف راوړ نو دوی د تورات او نورو آسماني کتابونوتصدیق کوونکی وو، نو یهودانو یوې ډلې تورات داسې خپلو شاووته وغورځاوه لکه چې بیخي یې نه وي لیدلی او هیڅ ورنه خبر نه وي نو کله چې دوی په خپل کتاب عقیده او ایمان نلري نو دنورو الهی احکامو په نسبت څه امید او هیله کول پکار دي؟

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
| --- | --- | --- |
| ســـریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی کله چې له مقدماتي چارو یعني احوال پوښـــتنې، تـــولګی تنظمیولو،حاضرۍ اخستلو او کورنۍ دندې کتلو څخه وروسته ــ دانګیزې پیدا کولو په نیت د نوي لوست سرلیک له زده کوونکو څخه پوښتي او بیایې په تخته لیکي.<br>وروسته زده کوونکوته دنده ورکوي څو لوست د ځـــانونو ســـره ولـــولي. | مقـــدماتي چـــارې انجاموي. |
| د لوســـت بهیـــر ۲۵ دقیق | ښوونکی یې غلطي اصلاح کوي. وروسته ښوونکی ورته لوست د تجویدپــه مراعاتولو سره لولي اودوی غوږ نیسي، بیایې په څـــو زده کوونکـــو لـــولي اونورټولګیوال غوږ نیسي<br>او په پای کې دلوست ارزونه کوي | دلوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ارزونـــــه اوکـــورنۍ دنـــده ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ــ څوک لوست په حرکاتو او روانۍ لوستلی شي؟<br>۲ــ څوک لوست کلمی "نبذ خریق" په تخته لیکلی شي او بیـــایې څـــوک تلفظ کوی شي؟<br>۳ــ څوک په (مصدق لما معهم) جمله په سمه توګه تلفظ کړای شي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>دنده ورکوي څولوست په کورونو کې د امام په مرسته ښه ضـــبط او پـــه کتابچو کې ولیکي. | ځوابونه وایي<br><br>کورنۍ دنده تر سره کوي. |

## لوست: ۵۶

## سرلیک: البقرة سورت ۱۰۱ آیت دویمه برخه

**صفحه:**

**وخت: یودرسي ساعت**

**موخې ــ زده کوونکي باید:**

ــ دلوست آیت په ښه توگه ولوستلی شي.

ــ دلوست په آیت کې طویل مد وپیژني.

ــ دلوست آیت یې دروح دآرامۍ اوخوشحالۍ لامل شي.

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی دمقدماتي چارو تر سره کولو وروسته د نوي لوست سرلیک (البقرة سورت د ۱۰۱ آیت دویمه برخه) په تخته لیکي اود زده کوونکوپاملرنه کتابونوته را اړوي ــ لوست ورته په حرکاتو او روانۍ لولي او دوي یې وروسته تکراروي ــــ بیایې په خو زده کوونکولولي ــ وروسته خو زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي"کتب الله" "وراء" "ظهورهم" اوداسې نورې کلمې پرې لیکي او بل زده کوونکی یې اعرابوي او دریم زده کوونکی یې تلفظ کوي بالآخره د لوست ارزونه کوي. | مقدماتي چارې سرته رسوي. |
| د لوست بهیر ۲۵ دقیقې | ۱ــ څوک کولای شي د لوست آیت په حرکاتو اوروانۍ ولولي؟<br>۲ــ دلوست آیت څوک د تجوید په مراعاتولو په خواږه آواز تلاوت کړي؟<br>۳ــ څوک کولای شي وراء ظهورهم کلمه تلفظ کړي؟<br>۴ــ څوک "کتاب الله" کلمه په تخته لیکلی شي؟ | دلوست په بهیر کې فعاله ونده اخلي.<br>ځوابونه وایي |
| ارزونه اوکورنۍ دنده ۱۰ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی امر کوي چې د لوست آیت په کورنوکې ښه ضبط او په کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده سرته رسوي. |

## لوست: ۵۷

## سرلیک: البقرة سورت د ۱۰۲ آیت لومړۍ برخه

**صفحه:**

**وخت: یودرسي ساعت**

**موخې ــ زده کوونکي باید:**

ــ د لوست آیت په حرکاتو او روانۍ ولوستلی شي.

ــ دغه آیت په خواږه آواز د تجوید موافق تلاوت کړای شي.

ــ د ټولو آیتونو سره د زړه له کومې مینه او علاقه وښيي.

**اړینه پوهه**

**د آیت ژباړه:** او متابعت وکړ یهودانو دهغه څه چې لوست په شیطانانو (پیریانو) په (زمانه د) پاچاهۍ د سلیمان کې (چې دې بې عقلانو کتاب الله تر شا و غورځاوه او سحرېې زده او په متابعت یې لګیا شول) او نه و کافر شوی سلیمان (د سحر د عمل په تحلیل سره) خو شیطانان کافر شوي وو حال دا چې ښود به یې خلکوته سحر (او متابعت به یې کاوه)

**تفسیر:**

لنډه دا چې یهودانو دین او کتاب پریښود اود سحر ــ او کوډو تابع شول او جادو له دوو خواوو په خلکو کې خپور شو:

۱ــ دسلیمان علیه السلام په زمانه کې په دې سبب چې پیریانو او انسانانو ناسته ولاړه سره درلود د نو انسانانو له شیطانانو څخه کوډې زده کولې او هغه به یې حضرت سلیمان علیه السلام ته ښوولې چې دا کوډې له ده څخه موږ ته رارسیدلې دي او ده د همدې کوډو په زور پرخلکو حکمونه چلول نو ځکه الله تعالی فرمایي چې دا کار کفر دی او د سلیمان نه دی.

| زده کوونکوکړنې | دښوونکي کړنې | وخت |
|---|---|---|
| مقدماتي چارې ترسره کوي | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه ورروسته دنوي لوست سرلیک (البقرة) ۱۰۲ آیت لومړۍ برخه په تخته لیکي اود زده کوونکو توجه خپلوکتابونو ته را اړوي اول له دوی څخه غواړي چې لوست له ځانونو سره ولولي، بیایې ښوونکی ورته په خواږه غږ د تجوید او قواعدو مطابق لولي ــ دوی غوږ نیسي او بیایې په زده کوونکو لولي ــ بیا دوی ته وخت ورکوي | سریزه ۵ دقیقې<br>بهیر دلوست ۲۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| | چې خپلې پوښتنې وکړي وروسته څو تنه زده کوونکي د تختې مخــې تــه راغواړي او واتبعو، تتلوا الشياطين او سليمان، السحر کلمې ورباندې پــه تخته ليکي، له نورو څخه غواړي چې دا کلمې تلفظ کړي او د يوه بل زده کوونکي څخه غواړي دغه کلموته حرکتونه ورکړي.<br><br>**ارزونه:**<br>۱ــ څوک د لوست آيت په حرکاتواو روانۍ لوستلی شي؟<br>۲ــ څوک يې په خواږه آواز د تجويد مطابق تلاوت کولی شي؟<br>۳ــ څوک "کفروا" کلمه په تخته ليکلی شي؟<br>۴ــ څوک «يعلمون الناس السحر» سم تلفظ کولای شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په کورونــوکې ښــه زده او پــه کتابچوکې وليکي. | د لوست په بهيــر کی فعالــه برخــه اخلي<br><br>ځوابونه وايي |
| ارزونـــــــه اوکــــورنۍ دنـــده ۱۰ دقيقې | | |

## لوست: ۵۸

## سرلیک: البقرة سورت د۱۰۲ آیت دویمه برخه

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

ــ د لوست آیت په حرکاتواو ورانۍ ولوستلی شي.

ــ دلوست آیت په خواږه آواز د تجوید په مراعاتولو تلاوت کړی شي.

ــ دلوست آیت یې د عقیدې د محکموالی لامل وګرځي.

**اړینه پوهه:**

د آیت دویمې برخې ژباره: (خلکوته یې سحر ښوده اومتابعت یې کاوه) د هغه شي چې نازل شوی وپه دوه پرښتوپه (ښارد) بابل کې (چې د یوې نوم) هاروت او د (بلې) ماروت (دی) او نه به کوله ښودنه دوی دواړو هیچاته تر هغه پورې چې ویل به یې دواړو بیشکه همدا خبره ده چې موږ آزموینه یو (د الله له طرفه) نومه کافر کیږه (په زده کولو دسحر چې د عمل پرجوازیې معتقد اوسې).

**تفسیر:** دهاروت او ماروت له پلوه سحر تعمیم وموند چې دا دوې پرښتې د"بابل" په ښارکې د بنیادمانو په ښه اوسیدلې او دوی ته د سحراوجادو علم ښه معلوم ؤ، د سحر هر طالب به چې دوی ته ورتلو، نودوی به هغه ته نصیحت کاوه چې سحر مه زده کوه چې د سحر د جائز ګڼلو له امله سړی کافر او ایمان یې زوال مومي.

| وخت | ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
| --- | --- | --- |
| ســـریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته د نوي لوست ســـرلیک (البقرة سورت د ۱۰۲ آیت دویمه برخه) په تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونوته متوجه کوي. اول له دوی څخه غواړي چې لوست د خپلو ځانونو سره ولولي. بیایې ښوونکی ورته په خـــواږه آواز د تجویـــد پـــه مراعاتولو وایي او دوی غوږنیسي ــ بیایې دویم ځل ورپسې تکرار وي. | مقدماتي چارې ســـرته رسوي. دلوست په بهیر کـــې فعاله ونډه اخلي. |
| دلوســـت بهیـــر ۲۵ دقیقې | بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست آیت ولولي اونورو تـــه غوږ کیږدي ــ<br>په پای کې دټولګي ارزونه کوي: | |
| ارزونـــــه اوکـــورنۍ دنده ۱۰ دقیقې. | **ارزونه:**<br>۱ــ څوک کولای شي چې د لوست آیت په حرکاتو اوروانۍ ولولي؟<br>۲ــ څوک د لوست آیت په خوږه آواز تلاوت کولای شي؟<br>۳ــ څوک" بِبَابِلَ " کلمه په تخته لیکلی شي؟<br>۴ــ څوک « وَمَا يُعَلِّمَانِ » کلمه سمه تلفظ کولای شي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي باید د لوست آیت په کورونوکې ښه ضبط او په کتابچو کې ولیکي. | ځوابونه وایي.<br>کورنۍ دنده ترســـره کوي. |

## لوست: ۵۹

## سرلیک: د البقرهٔ سورت ۱۰۲ آیت دریمه برخه

**صفحه:**

**وخت: یودرسي ساعت**

**موخې ــ زده کوونکي باید:**

ــ دلوست دآیت دریمه برخه په حرکاتو او رواني ولولي.

ــ دلوست د آیت ځینې کلمې هجاء او اعراب یې وښودلی شي.

ــ دلوست په آیت یې روح تازه شي.

د آیت د پاتې برخې ژباړه: نو زده کاوه به هغه له دوی دواړو  شخه هغه شی چې بیلتون به یې کاوه په هغه سره په منځ دمیړه اوښځې کې او نه وو دوی ضرر رسوونکي په دغه سحر سره هیڅاته مګر په اذن (حکم) دالله سره او زده کوي دوی (یهودان) هغه څه چې ضرر رسوي دوی ته او نفع نه رسوي دوی ته او هرومرو په تحقیق پوهیدل دوی چې خامخا هغه چې پیري (زده کوي په اعتقاد د جواز) سحر نشته ده لره به آخرت کې هیڅ برخه د نیکۍ اوهرومرو ډیر بد دی هغه چې پلوری دی دوی په هغه شي سره (حصه د) ځانو خپلو که چیرې وای دوی چې پوهیدلی په بد انجام د سحر نونه به یې زده کاوه.

تفسیر: که سره له دغه نصیحته به دا د سحر طالب د سحر له زده کولو شخه لاس نه اخیست نو یې ورښود الله پاک د هاروت او ماروت په واسطه د خپلو بندګانو آزموینه کوله، نو ځکه فرمایي چې له هسې علومو شخه آخرت ته هیڅ یوه ګټه نه رسیږي بلکې ډیر نقصان رسوونکی دی او د الله له ارادې او حکم پرته هیڅ اثر نه پرې مرتبیږي، نو باید د دین او کتاب علم زده شي چې د دواړو جهانو اجر او ثواب لري.

| وخت | دښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی دمقدماتي چارو ترسره کولو وروسته د نوي لوست سرلیک د (البقرة سورت۱۰۲ آیت دریمه برخه) په تخته لیکي او له زده کوونکو شخه غواړي چې ځوک آیت دا برخه مخکې زما له تلاوت شخه تلاوت کولی شي؟ | په مقدماتي چارو کې فعاله برخه اخلي |
| بهیر دلوست ۲۵ دقیقې | په دې صورت کې ښوونکی ددوی غلطي اصلاح کوي.<br>اوبیا لوست ورته په خواږه او زړه راښکونکي آواز سره د تجوید مطابق تلاوت کوي اودوی یې اوري، بیا له ځو تنو شخه غواړي چې لوست تلاوت کړي او نورې واوري. بلاخره ځو تنه تختې ته راغوړي او «بضارِّین، یُفَرِّقُونَ بِهِ بَیْنَ الْمَرْءِ ، ما یضرهم» کلمې ورته په تخته لیکي د یوه شخه غواړي چې تلفظ یې کړي، له بل  شخه غواړي چې حرکتونه ورکړي او له نورو شخه غواړي چې تختې ته توجه راواړوي. | دلوست بهیر تعقیبوي.<br>ځوابونه وایي |
| ارزونه اوکورنۍ دنده ۱۰دقیقې | ارزونه:<br>۱ــ څوک د آیت دغه برخه په حرکاتو اورواني لوستلی شي؟<br>۲ــ څوک دآیت دغه برخه د تجوید په قواعدو سنبال تلاوت کولی شي؟<br>۳ــ څوک «یفرقون» کلمه سمه تلفظ کولی شي؟<br>کورنۍ دنده:<br>زده کوونکو ته دنده سپاري چې لوست ښه ضبط او ولیکي. | کورنۍ دنده تر سره کوي. |

**لوست: ۶۰**

## سرلیک: البقرة سورت د ۱۰۲ آیت وروستۍ برخه

**صفحه:**

**وخت: یودرسي ساعت**

**موخې ــ زده کوونکي باید:**

ــ د آیت دغه برخه په حرکاتواو روانۍ ولولي.

ــ دآیت دغه برخه د تجوید د قواعدو مطابق تلاوت کړي.

ــ دآیت دغه برخې سره هم د زړه له کومې مینه څرگنده کړي.

**اړینه پوهه:**

ژباړه اوتفسیرېي په مخکني لوست کې ذکر شول.

| وخت | ښوونکي کړني | زده کوونکوکړني |
|---|---|---|
| سـریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی دمقدماتي چارو څخه وروسته د نوي لوست سرلیک (البقرة سورت ۱۰۲ آیت وروستۍ برخه) په تخته لیکي اوله زده کوونکـو څخـه غواړي چې لوست د ځانوتو سره ولولي او بیا ښوونکی ورته په خـواږه آواز لوست تلاوت کوي. | مقـدماتي چـارې سرته رسوي . |
| دلوسـت بهیـر ۲۵ دقیقې | او دوی ورته غوږ نیسي ــ بیا یې له څو تنو څخه غواړي چې په نوبت سره لوست ولولي او نورې واوري.<br>بیا څوتنه د تختې مخې ته راغوړي یوه ته وایي « ولبئس" خـلاق، علمـوا» کلمې ولیکه، بل ته وایي حرکتونه ورکړه اوبل ته وایي تلفظ یې کړه. | دلوست په بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ارزونـه او کورنۍ نده ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ــ څوک به لوست په حرکاتواوروانۍ ولولي؟<br>۲ــ څوک لوست په خواږه آواز د تجوید مطابق لوستلی شي؟<br>۳ــ ماله، ولبئس ماشروا " کلمې څوک په سمه توگه تلفظ کولی شي؟<br><br>**کورنۍ دنده :**<br>دنده ورته سپاري چې په کورونوکې لوست ښه ضبط او ولیکي. | ځوابونه وايي.<br><br>کورنۍدنده تر سره کوي. |

**لوست: ۶۱**

**سرلیک: البقرة سورت ۱۰۳ آیت**

**صفحه:**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.
- د لوست آیت په روانۍ ولوستلی شي.
- د قرآن ټول آیتونه د زړه له کومې د الله کلام وګڼي.

**اړنیه پوهه:**

د آیت ژباړه: او که په تحقیق دوی ایمان راوړی وای او پرهیز یې کړی وای (له سحر او یهودیت څخه نو هرومرو ثواب له طرفه د الله څخه ډېر غوره دی (له دې سحر او رشوت د تورات په تحریف) که وای دوی پوهیدلی په بهترۍ د تورات نو سحر به یې نه زده کاوه او له الله څخه به ډاریدل.

تجوید: د «لَو، واتَّقَوْا او خَيْرٌ » په کلمو کې د لین مد راغلی دی، په دوو لومړیو کلمو کې واو ساکن او ما قبل یې مفتوح دی او په دریمه کلمه کې (ی) ساکن ما قبل یې مفتوح دی.

په « مِّنْ عِندِ » کلمه کې د ساکن نون څخه وروسته د «ع» توری راغلی چې د اظهار له تورو څخه دی.

په « عِندِ اللَّه » کلمه کې د الله لفظ ډک نه ویل کېږي یعنې باریک اداء کېږي ځکه ماقبل حرف یې مکسور دی.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو څخه وروسته د نوي لوست سر لیک البقرة سورت ۱۰۳ آیت په تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي – وروسته لوست ورته تلاوت کوي او دوی یې اوري. بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست تکرار کړي – بیا زده کوونکي په دریو ډلو ویشي او د لوست یوه یوه مرحله ورته سپاري څو هغه ښې زده کړي او بیا له یو بل څخه پوښتنې وکړي.<br>او بالآخره د لوست ارزونه کوي.<br>**ارزونه:**<br>۱. څوک کولای شي د لوست آیت په حرکاتو او روانۍ ولولي؟<br>۲. څوک کولای شي د لوست آیت د تجوید مطابق تلاوت کړي؟<br>۳. څوک کولای شي « واتَّقَوْا لَمَثُوبَةٌ » کلمه سمه تلفظ کړي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>دنده ورکوي څو لوست ښه ضبط او ولیکي. | مقدماتي چارو کې ونډه اخلي.<br>د لوست بهیر کې فعاله برخه اخلي.<br><br>ځوابونه وایي. |

## لوست: ۶۲

## سرلیک: البقرۀ سورت ۱۰۴ آیت

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د لوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.
- د لوست آیت د تجوید مطابق په روانۍ ولوستلی شي.
- د لوست آیت یې روح او زړه تازه کړی شي.

**اړینه پوهه:**

د آیت ژباړه: ای مؤمنانو مه وایئ تاسې (لفظ) راعنا (رسـول الله تـه) او ووایـئ (پـه ځـای د راعنـا لفـظ) أنظرنا او واورئ تاسې (حق د زړه په غوږو) او شته دی د کافرانو لپاره عذاب دردناک (د دوزخ).

**تفسیر:** یهودیان به د رسول الله صلی الله علیه وسلم پـه مجلـس کـې کیناسـتل او د دوی خبـرې بـه یـې اوریدلې په ځینو خبرو به چې ښه نه پوهیدل، یا به یې نه اوریدلې د هغو تحقیق بـه یـې بیـا پـه تکـرار سـره کاوه او ویل یې (راعنا) یعنې زمونږ په لوري توجه وفرمایئ او رعایـت مـو وکـړئ، ددې کلمـې د اوریـدلو په اثر به کله کله مسلمانانو هم همداسې ویل نو الله پاک منع کوي چې داسې مه وایـئ او کـه وایـئ هـم نـو (انظرنا) ووایئ چې د هغه معنی هم همغه ده او د خبرو د شروع ځخه پوره متوجـه اوسـئ چـې بیـا پوښـتنې ته اړ نشئ خو اصل خبره داده چې یهودانو دا خبره د فریب او بدبینۍ له امله ویلـه او دا کلمـه بـه یـې پـه داسې ژوولې ژبه اداء کوله چې د (راعینا) توری به هم ترې راووت چې معنـا یـې ده ای زمـونږ شـپونکیه او علاوه پر دې د یهودانو په وړاندې (راعنا) د احمق او ناپوه معنا هم ورکوي.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| ســریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقـدماتي چـارو ځخـه وروسـته د نـوي لوست سر لیک د البقرة – ۱۰۴ آیت پـه تختـه لیکـي او لـه زده کوونکو ځخه غواړي چې لوست په پټه خولـه لـه ځـانونو سره ولولي. | مقدماتي چارې تر سـره کوي. |
| د لوست بهیر ۲۵ دقیقې | بیا ښوونکی لوست ورته په خـواږه آواز پیلـوي او دوی غـوږ ورته نیسي او بیا د دویم ځل لپاره یې ورسره تکراروي. | د لوست بهیر کې فعالـه |

| | | |
| --- | --- | --- |
| ۱۰ دقیقې | بیا له ځو زده کوونکو ځخه غواړي چې لوست ولــولي او نــور ورته غوږ ونیسي. او بیا له ښوونکي ځخه پوښتنې کوي.<br><br>**اروزنه:**<br>۱- څوک د لوست آیت له حرکاتو سره لوستلی شي؟<br>۲- څوک د لوست آیت د تجوید پــه مراعــاتولو پــه روانــۍ لوستلی شي؟<br>۳- څوک (راعنا) کلمه په تخته لیکئ شي؟<br>۴- څوک « وَقُولُواْ انظُرْنَا» کلمه سمه تلفظ کولای شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته وایي چې لوست په خپلو کتــابچو کــې ولیکــي او ښه یې ضبط کړي. | ونډه اخلي.<br><br>کورنۍ دنده تــر ســره کوي. |

## لوست: ۶۳

## سرلیک: البقرة سورت د (۱۰۵) آیت لومړۍ برخه

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.
- د لوست د آیت کلمې هجا او تلفظ کړی شي.
- د لوست آیت په تجویدي قواعدو تلاوت کړی شي.
- د لوست آیت یې ایمان او عقیده پیاوړې کړي.

**ارینه پوهه**

د آیت ژباړه: نه خوښوي (دوست نه ګڼي) هغه کسان چې کافران شوي دي له اهل کتابو څخه او (نه) له مشرکانو څخه دا (خبره) چې نازله کړه شي پر تاسې کومه ښه خیبره (لکه وحی، نصرت) له ربه ستاسې د حسد او رخې له مخې) او الله خاصوي په رحمت خپل سره هغه څوک چې اراده یې وکړي (د تخصیص په رحمت سره) او الله ډېر د فضل څښتن دی.

تفسیر: یعني کفار (یهودان دي که د مکې مشرکان) په دې نه دي خوشحاله چې قرآنکریم په تاسې نازل شوی دی. بلکې یهودانو داسې غوښتل او هیله یې در لوده چې وروستی نبی صلی الله علیه وسلم په (بنی اسرائیلو) کې مبعوث شي او د (مکې) د مشرکانو خوښه دا وه چې د دوی له تیره دې وي مګر دا خو د (الله تعالی) لوی فضل او مرحمت دی چې وروستی نبی صلی الله علیه وسلم یې د تاسې د امیانو په تیر کې پیدا کړ.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو څخه وروسته د نوي لوست سر لیک البقرة – ۱۰۵ آیت په تخته لیکي او لوست په خواږه آواز د تجوید په مراعاتولو سره پیلوي او زده کوونکي ورته غوږ نیسي – د دویم ځل لپاره یې ور سره تکراروي. | مقدماتي چارې تر سره کوي. |
| د لوست بهیر ۲۵ دقیقې | بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست ولولي او نورو ته غوږ ونیسي وروسته زده کوونکي په څو ډلو ویشي او هرې ډلې ته د لوست یوه مرحله ورکوي څو اول په خپلو کې هغه ښه ضبط کړي او بیا یوه له بلې ډلې څخه په هغه کې پوښتنې وکړي. | د لوست بهیر کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱. څوک د لوست اوله مرحله لوستلی شي؟<br>۲. څوک د لوست دوهمه مرحله لوستلی شي؟<br>۳. څوک د لوست دریمه مرحله سمه تلاوت کولی شي؟<br>**کورنۍ دنده:** دنده ورکوي څو لوست په کورونو کې ښه زده او په کتابچو کې ولیکي. | ځوابونه وایي. |

## ۶۴ لوست:

## سرلیک: البقرة سورت د ۱۰۵ آیت دویمه برخه

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

- زده کوونکي د لوست آیت په حرکاتو او رواني ولوستلی شي.
- د لوست په آیت کې ذکر شوې تجویدي قاعدې عملي کړای شي.
- د لوست په آیت یې عقیده محکمه شي.

**اړینه پوهه:**

د جلاله په لفظ (الله) کې د لام حرف ډک لوستل کیږي ځکه مخکې حرف یې مفتوح دی. د صاد حرف په يَخۡتَصُّ کلمه کې ډک لوستل کیږي ځکه دا حرف له اووه ګونو استعلایه حروفو څخه دی او همدارنګه د شد علامه هم ورباندې شتون لري یعنی د تلاوت په وخت کې باید د دوو حرفونو حق اداء شي.

په « مَن يَشَاءُ » کلمه کې متصل مد راغلی چې د یوه څخه تر شپږو حرکتونو پورې کش کیږي او حکم یې واجب دی او دې مد ته کلمي مد ویل کیږي چې د مدحرف اوسبب یې په یوه کلمه کې راجمع شوي دي.

## لوست: ۶۵

## سرلیک: البقرة سورت ۱۰۶ آیت

**صحفه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې: زده کونکي باید:**

- د لوست آیت په حرکاتو ولوستلی شي.
- د لوست آیت په روانۍ ولوستلی شي.
- د لوست په آیت یې روح او روان خوشحاله شي.

**اړینه پوهه:**

د آیت ژباړه: هغه چې منسوخ کوو موږ له کوم آیته یا هیروو یې (له زړونو) د مؤمنانو څخه نوراليږو بهتر له هغه یا په مثل د هغه (په تکلیف او ثواب کې) ایا نه پوهیږې ته چې بیشکه الله په هر څه بنه قادر دی.

**تفسیر:** دا هم د یهودانو پیغور دی کله چې ستاسې په کتاب کې ځنې آیتونه منسوخ کيږي نو وايي که دا کتاب په ربنتیا د الله تعالی له لوري وای، نو کله چې الله تعالی د هغې نسخې له سببه چې موږ او تاسې اوس پرې خبریږو لا له پخوا څخه خبر ؤ نو ولې به یې یو داسې آیت را لیږه؟ نو الله فرمایي چې نه په لومړنۍ خبره کې څه عیب ؤ او نه په ورستنۍ خبره کې کوم عیب شته خو «أحکم الحاکمین» د وخت په تناسب اول هغه حکم مناسب وګاڼه او بیا یې دغه حکم لازم وباله.

## لوست: ۶۶

## سرلیک: البقرة سورت ۱۰۷ آیت

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست آیت په حرکاتو او روانۍ ولوستلی شي.
- د لوست د آیت کلمې هجا او اعراب کړی شي.
- د لوست په آیت یې قلبي اطمینان حاصل شي.

**اړینه پوهه:**

د آیت ژباړه: ایا نه پوهیږې ته چې بیشکه الله (چې دی) همـــده لـــره دی ســـلطنت (او پاچـــاهي) د اســـمانونو او ځمکې او نشته تاسې ته پرته له الله نه هیڅ دوست (چې وموساتي له بلیاتو) او نه مـــددګار چـــې لـــه عـــذاب مو خلاص کړي.

**تفسیر:** یعنی دلته خو د الله تعالی قدرت او ملکیت په ګردو بانـــدې شـــامل دی او هلتـــه پـــه خپلـــو بنـــدګانو اعلی درجه عنایت او مرحمت لري، نو اوس د بندګانو په ګټو او ښیګڼو باندې پرته دده لـــه ذاتـــه بـــل څـــوک پوهیدای شي او څوک دده په اندازه بندګانو ته منافع او ښېګڼې رسولی شي.

## لوست: ۶۷

## سرليک: البقرة سورت ۱۰۸ آيت

**صفحه:**

**وخت:** يو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي بايد:

- د لوست آيت په حرکاتو او روانۍ ولوستلی شي.
- د لوست د آيت کلمې هجا او اعراب کړی شي.
- د لوست آيت يې قلبي اطمينان لا زيات کړي.

**اړينه پوهه:**

د آيت ژباړه: ايا اراده لرئ تاسې چې سوال وکړئ له رسول خپله لکه چې سوال کړی شوی ؤ له موسی څخه پخوا له دې (په راز راز نامناسبو طريقو) او هر څوک چې بدلوي (او غوره کوي) کفر په ايمان نو په تحقيق ورکه يې کړه سمه لاره.

**تجويد:** په (أَن تَسْـأَلُوا۟) کلمه کې اخفاء راغلې ده ځکه د نون ساکن څخه وروسته د (ت) توری راغلی چې د اخفاء له تورو څخه دی.

په (مِن قَبْلُ) کلمه کې هم اخفاء ده ځکه د نون ساکن څخه وروسته د (ق) توری راغلی چې د اخفاء له حروفو څخه دی په (مَن يَتَبَدَّل) کلمه کې ادغام واقع شوی ځکه د نون ساکن څخه وروسته د (ی) توری راغلی چې د باغنه ادغام له حروفو څخه دی.

په (فَقَدْ) کلمه کې قلقله راغلې ده ځکه دال توری د قلقلې له تورو څخه دی چې په (قطب جد) کې جمع شوي دي.

## لوست: ۶۸- ۶۹ – ۷۰

## سرلیک: د الفیل سورت لومړۍ او دویمه برخه

**صفحه:**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست سورت په حرکاتو او روانۍ ولوستلی شي.
- وپوهیږي چې الله د خپل کور ساتنه په وړو مرغیو هم کولای شي.
- د لوست سورت یې عقیده ټینګه کړي.
- د لوست سورت حفظ کړی شي.

**اړینه پوهه:**

د سورت ژباړه او تفسیر: ایا نه و لیدلی تا نه یې خبر چې څرنګه کار کړی و رب ستا له خاوندانو د فیل سره ایا نه یې و ګرځولی (هغه) کید مکر د دوی په (حق د نړولو د کعبې بلکې ګرځولی یې ؤ) په ګمراهۍ زیانمنۍ بطلان کې او راویې لیږل په دوی باندې مرغان ټولګی ټولګی چې ویشتل یې هغوی په کاڼو سره چې له ختو په اور پخو شویو څخه جوړ شوي وو، نو ویې ګرځاوه دغه لښکر په بڼان د وښو خوړل شوو پایمال کړی شوو.

د فیل سورت له مکي سورتونو څخه دی او پنځه آیتونه لري – دا سورت د فیل پیښې پورې ځانګړتیا لري.

هغه دا چې ابرهه د یمن والي کله چې ولیده عربان او نور خلک د هر لوري او سیمې څخه د کعبې شریفې زیارت ته راځي نو یې په زړه کې کینه او رخه پیدا شوه او هوډ یې ونیوه څو یوه د عیسوي مذهب یوه لویه او ښکلې کلیسا د کعبې په مقابل کې جوړه څو د کعبې په ځای هلته مخه کړي، هغه ؤ چې دا خپل تصمیم یې عملي او یوه لویه او ښایسته کلیسا یې په ډیرو لګښتونو سره جوړه کړه خو د خلکو پاملرنه ورته ونه شوه او ډیر وخت نه ؤ تیر شوی چې د قریشو خلک ددې کار په وړاندې هیجاني شول او بالآخره یوه عرب په هغه کې مرداري وکړه او په یوه بله وینا یې یو اور بل کړ چې د باد په واسطه د ابرهه په کعبه ور مسلط شو. هماغه وه چې دا مسئله د ابرهه د قهر او غصې لامل شوه او لوی لښکر یې چمتو کړ او د خپلو فیلانو په مټ یې د کعبې شریفې د نړولو هوډ ونیو. د لارو په اوږدو کې یې قبیلې

مغلوبې او مخکې تګ ته یې دوام ورکړ تردې چې مکې شریفې ته ورسیدل په دې وخت کې د قریشو مشر عبدالمطلب ؤ او د کعبې مشري یې په غاړه در لوده، کله چې ابرهه ولیده چې خلک جنګ او مقابلې ته تیار نه دي نو د کعبې په نړولو زړه ورشو خو کله چې محسر وادي ته ورسیدل د مالګین دریاب له لوري واړه واوړه مرغان را پیدا شول چې شنه او زیړ رنګونه یې وو او په مبنوکو او پنجو کې یې وړې وړې شګې لیده کیدې او ډله ډله له دې مرغانو څخه د کعبې شریفې په فضا کې را څرګند شول او د ابرهه پر لښکر یې هغه شګې را وغورځولې او دا وړې شګې د الله په قدرت د ټوپک تر مرمۍ ډېرې تیزې وې او په هر حه چې لګیدې هغه یې سوری کاوه د ابرهه د لښکر یوه لویه برخه له منځه ولاړه او نور یې وتښتیدل او بیا په ډول ډول مرضونو اخته او مړه شول. او ددې سورت د نازلیدو لوی لامل نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته تسلې وه او په عین حال کې یې دا پیغام هم له ځانه سره درلود لکه څنګه چې الله د ظالمانو څخه کعبه وژغورله همدارنګه به ستا دین هم وساتي.

## لوست: ۷۱ - ۷۲ - ۷۳

## سرلیک: الماعون سورت

صفحه:

وخت: یو درسي ساعت

موخې: زده کوونکي باید:

- د لوست آیتونه په حرکاتو ولوستلی شي.
- د لوست آیتونه په روانۍ ولوستلی شي.
- د لوست آیتونه حفظ کړی شي.
- د لوست آیتونه یې عقیده او ایمان پیاوړی کړي.

**اړینه پوهه:**

د الماعون سورت ژباړه او تفسیر:

ایا وینې ته هغه څوک چې دروغ وایي په ورځې د جزا باندې، نو (که یې وپیژنې همدغه) همغه (څوک) دی چې رټي شړي یتیم(په شړلو بدو سره) نو نه کوي تیزول په طعام، خواړه ورکولو د مسکین باندې پس هلاک افسوس کنده د دوزخ یا خرابي ده لپاره د لمونځ کوونکو هغه کسان چې دوی له لمانځه خپله غافله بې خبره وي. هغه کسان چې دوی ریا کاري کوي (په عمل خپل کې ښوونه کوي خلکو ته) او منع کوي دوی مال د زکوة یا اسباب د کمک یو له بله.

## لوست: ۷۴ - ۷۵ - ۷۶

## سرلیک: الکافرون سورت

صفحه:

وخت: یو درسي ساعت

موخې: زده کوونکي باید:

- د لوست آیتونه په حرکاتو ولوستلی شي.
- د لوست آیتونه د تجوید په مراعاتولو په سمه توګه تلاوت کړی شي.
- د لوست آیتونه حفظ کړی شي.
- د لوست آیتونه یې عقیده پیاوړې کړي څو هیڅ کافرانو ته میلان ونکړي.

**اړینه پوهه:**

د سورت ژباړه او تفسیر:

**وروایه اې محمده! چې اې کافرانو نه کوم زه (فی الحال) عبادت د هغه شي چې تاسې یې کوئ (ای کافرانو چې بتان دي) او نه یئ تاسې (ای کافرانو فی الحال) عبادت کوونکي د هغه ذات چې زه یې عبادت کوم. اونه یم زه عبادت کوونکی په آینده کې (د هغه شي چې عبادت یې کوئ تاسې) (ای کافرانو) او نه یئ تاسې اې کافرانو په آینده زمانه کې) عبادت کوونکي د هغه ذات چې زه یې عبادت کوم (چې الله دی) تاسې لره دین ستاسې دی (د شرک) او مالره دین د توحید، اسلام دی.**

**تفسیر: د قریشو څو تنه مشران د نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضور ته ورغلل او دا هیله یې څرګنده کړه او ویې ویل: ای محمده! ددې لپاره چې صلح منځ ته راشي نو یو وړاندیز لرو هغه دا چې ته یو کال زمونږ د معبودانو عبادت کوه اوبل کال به مونږ ستا د معبود عبادت کوو، ددې سولې څخه به دواړو لوریو ته ګټه رسیږي. نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: معاذ الله دا کار به یوه لمحه او شیبه هم ونکړم او نه به څوک د الله سره شریک ونیسم. د قریشو مشرانو وویل: تاسو زمونږ ځنې خدایان قبول کړئ د هغوی بدي مه بیانوئ مونږ به هم تا رښتینی ګڼو او تصدیق به دې کوو او ستا د معبود لمانځنه به کوو. هغه ؤ چې دغه سورت نازل شو او نبی کریم صلی الله علیه وسلم د دوی په وړاندې تلاوت کړ.**